


له نیکه مرغه! د مطبوعاتي نوښت او ابتکار په توګه د شهامت اووم خپرنیز کال په پای ته رسیدو اودتیرې اووه کلنې دورې دجهادي سیر، علمي، سیاسي، تاریخي او ادبې بریاوو دلمانځلو په ویاړ دادی د منان څښتن (ﷻ) د بې پایه لورینو په مرسته، د متعهدو لوستونکو په هڅونه اود تاندو استعدادونو دعلمي، جهادي او سیاسي روزنې دښې ودې او ښیرازۍ پخاطر د اووم کال "کالګڼه" وړاندې کوو.

**فالحمد الله فی البدایة والانتهاء، والشکر له فی السراء والضراء.**

ښکاره ده دانسان په شخصي ژوند کې دعمر اووه کلنۍ دوره تانده او نوخیز مرحله ده، په دغه موده کې دانساني شباب اوکمال ټولې رنګینۍ، ذهني صلاحیتونه اوجسماني وړتیاوې په معصومانه پردو کې پوښلې وي، چې دښو اوبدو ترمنځ دتمیزاوبېلتون کرښې نه پېژني او راتلونکی یې د"عدم او وجود"تر منځ معلق وي.

دلته ددې فلسفې ژوروته نه ځو، ولې دنیا دفلسفې اندونو اونظریاتو په ځای؛ ډېره د کار اوعمل میدان ده، دولسونو په عروج او زوال کې کلونه، نه؛ ثانیې او دقیقې هم ارزښت لري، کومو ولسو ته چې دوخت قدر معلوم دی، هغوئ سپیرې دښتې په ښو بدلولی شي، ځمکه اوفضا قبضه کولی شي، هغوئ دزمانې دقیادت اورهبریت واګې لاس کې نیولی شي، نپولین په استرلایانو دخپل بري راز داګانه چې: "هغوئ ته دپنځو دقیقو ارزښت نه وو معلوم... او هغه هم بیا په "واټرلو" میدان کې دشکست ترخه پیاله په دې غوړپ کړه، چې دجګړې په سهار هغه او جنرال یې څو ګرانبیه دقیقې ضایع کړې اومقابل جنرال(بلوشر) څو دقیقې وړاندې میدان ته راغی، په هغو څو دقیقو کې دنپولین واکمنۍ ټغر ټول او دملیونو خلکو په بیګاه اوسبا کې بدلون راغی.

رازو دیته چې دنړۍ دبیدارو او ویښو ولسونو په ژوند کې اووه کاله نه؛ اووه ساعته او اووه دقیقې هم قدروقیمت لري او ضایع کول یې دځان وژنې مرادف عمل بولي.

پوهان وایي: دانسان له تیروتنو یوه لویه دا ده چې همیش دخپل ماحول له تاثیرنه مرعوب وي اوخپلو کمزوریو ته پام نه اړوي، دخپلو کړنو احتساب پخپله نه کوي، پکار ده، هر سړی ددینه وړاندې چې د"یمین اویسار" قلموال ورته خپله عمل پاڼه مخکې کړي، دڅو ثانیو او دقیقو ځنډ لپاره خپلو کړو وړو ته دمحتسب په نظر وګوري او خپل ضمیر په مخاطب کولو ووایي:

**اقرأ کتابک، کفی بنفسک الیوم علیک حسیبا (۱۵: ۱۷)**

دخپل عمل پاڼه ولوله! نن بل محاسب ، کاتب او شاهد ته اړتیا نشته ستا خپل ضمیر ستا (داحتساب) لپاره بس دی.

په دې ارزښتمنو پاڼو کې مونږ دماده پال لیکوالو پشان دا دعوه نه کوو چې ګواکې په تیره اووه کلنه ماضي کې مونږ دا، دا کارونه او خدمتونه کړي، خلک دې مونږ ته په دوه لاسي سلام راشي!! دا ادعاء هم نه کوو چې شهامت پخپل اووه کلن علمي او جهادي سیر کې یومخ تیروتنې او نیمګړتیاوې نه لرلې، دالا په هم نه کوو چې شهامت له هر پلوه مثالي او دمعیار په تول پوره وه، برعکس دبریاوو او لاسته راوړنو ترڅنګ په هغو نیمګړتیاوو او تیروتنو، چې دهرې خپرونې او نشریې سره ملې دې، پخپل ضمیر او وجدان کې هغه حسوو او پرې اعتراف لرو، ډېر ځلي علمي اوعملي کمزوریو دبریاوو له منزل لرې کړي یو، هغسي چې اړتیا وه په مضامینو، لیکنو او تحلیلونو کې د راښکون او جالبیت تومنه، دتنوع او تفنن رنګونه کم وو، دګڼو موضوعاتو په اړه قلم پورته کول اړین وو،لیکن د نفساني کمزوریو له امله نه یوتوانیدلي...

البته که ددې ترڅنګ په دې بل اړخ هم فکر وکړو چې مونږ داسبابو په دنیا کې اوسو، وسایلو او اسبابو ته له اړتیا مستغني نه یو، پریمانه وسایل او دمجربو همکارانو شتون هغه څه دي چې وربانديې اتکا او باور کېږي له رول او تاثیره یې څوک انکارنلري ، دفکري او معنوي غورځنګ دتقویت لپاره یې اړین بولي، که دصلیبي اشغال داختناق هغه ترخې شیبې اوکړکیچن شرائط په زړه کړو چې داسلامي امارمشرتابه په امر فرهنګي چارو کمیسیون دخپلو نشراتو پیلولو تابیا وکړه او په اول قدم کې څرک اوبیا شهامت مطبوعاتي نړۍ ته را ووته، صلیبي ائتلاف دپوځي یرغل ترڅنګ له ټولو عصري و سایلو نه په ګټه دافغان مسلمان ولس دبې لارې کولو اوزمونږ په دیني، کلتوري او اخلاقي ارزښتونو دیرغل په موخه سلګونه چاپي او بریښنايي خپرونې په کار اچولې او زرګونه کرایي قلموال او کتونکي یې ګومارلي وو، ټوله زمکنۍ کره دامریکایانو دفرمایشي اوجعلي تبلیغاتو تر پوښښ لاندې وه، افغانستان کې ښکاره واقعیتونه یې معکوس اوسرچپه تعبیرول،دامریکا اوناټو وحشتونه اوجنایتونه یې له خلکو پټول.

په دې علاوه درعب او ډار خپسه دومره عامه اود هر چا له بره ختلې وه، چې په وجه یې دډېرى نوماندو قلموالو ،لیکوالو اوېناوالو ژبې ګونګې ،خولې یې بندې اولاسونه یې شل وو، دهغوئ په روحیاتو د لړزې څپه دومره سوره وه، دامریکا سره جنګ ورته د غره سره سرجنګول ښکاریده: ځینو ویل دا موسم !اوپکې دا تخم کرل... کله مناسب دی؟... .... جهادي سبک ...جهادي لهجه ...او دازادۍ په اسلوب.... دلیکلوزمانه... تللې .... افغانستان ته نوې نړۍ راغلې.... نوی موسم... نوې هوا.... نوی تخم ... اونوې اوبه دي...

په داسي ترهېدلې فضا کې څو بادر که مجاهدو قلموالو اولیکوالو په تاندو قلمونو دمجهزې صلیبې میډیا تبلیغات او نشرات وننګول! اوپه نره یې له هغوئ سره سیالي وکړه،هغوئ په هڅاندو فکرونو دجهاد اومبارزې ریښې وغځولې،دهېواد دازادۍ علمبردارو ته یې ددښمن په وړاندې دثبات، صبر ،اواستقامت روحیه ورکړه ، ددښمن جنګي،سیاسي او تبلیغاتي دسیسې یې رسوا کړې او په مجاهدانه فکرې قلموال مجاهدین اومبارزین وروزل، اسلامي استعدادونه، فکرونه او ذهنونه یې تنویر کړل، ددې بیمثاله مسولانه ګامونو په برکت، دادی دنومیالیو لیکوالو دنه همکارۍ باوجود، دامینتي اوروحي ستونزو او کړاوونو باوجود، داسبابو او وسایلو دضعف باوجود،د فني او مسلکي تجربې نشتوالي باوجود، ۲۱ پېړۍ دلوی افغان جهاد اهدافو تمثیلوونکې اوترجماني مجلې په حیث په مطبوعاتي افق دشهامت روڼ اوځلیدونکی شتون! او په ازادۍ مین قشر کې لا مثال مقبولیت داسي کار نامه ده چې دهېواد

دمطبوعاتي تاريخ نن اوپرون دواړه يې له بېلګې وړاندې کولو نه عاجزې ښيي.

دنن اوپرون دا مقايسه داړ رابښي او ايمان مو محکموي چې حق زوال نلري!! حق پالنه اوربښتنپالنه ناکامي نلري، هر عمل اوهر کار ضايع کيږي، مګريو عمل د﴿ **اَنِي لا اُضِيعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِنكم**) په اصل زوال نلري.

هو!پوره ډاډ لرو چې دالله (جل جلاله) دبنده ګانو له منځه رښتين پالان دشهامت په اړه نهيلي ونلري، که دشهامت تېره ماضې دشابس او مبار کۍ وړ نه بولي، خوپرې دملامتيا غشي به هم پرې ونه وروي! او خوښ يو چې ضمير مو دستاينو اوتحسين تږی ندی.

داچې شهامت په تېره موده کې څنګه وکړای شول ،دوامدار ترخپلو لوستوالو و رسي؟ رښتيا " دمجلې او خپرونې چلول د خپل زړه ويني څکل دي!" شهامت چلوونکي هم داسي وبولئ! هيڅ ګڼه په اسانه اولنډه تر لوستونکو نده رسيدلې ! ډېرو خواريو کښلو ،زحمتونو ګاللو اودزړه په وينودتورو ليکلو وروسته يوه مجله ددې وړ کېږي چې د لوستونکو جهادي، علمي او ادبي تنده ماته کړي، په تيره موده کې له ځنډ او وقفې پرته تر پرهنګپالو د شهامت رسيدل دخپرونې او نشرېې په حيث دشهامت لپاره له برياوو ډک وياړ دی!بل ډېرو ته دا نه ښکاري چې دمجلې هره ګڼه په څومره زيار ،څومره کوښښونو او دڅومره ستړياوو وروسته دچاپ ترمرحلې رسي؟ په دې معنی چې دليکوالو لخوا د ليکنو مواد مندل، په فارغ ذهن، سرو مغزو اوهڅاند فکر هغه دليکنې داملا ئې اوانشائې مرحلو(تخطيط ، تسويد او تبييض) تيرول ،مسوده تيارول، د مختلفوليکوالو ليکنې راغونډول ، يوه، يوه له نظر نه تيرول، دهغو دکمپوز ونې چارې سرته رسول، پروف تصحيحول، دښه او بد، د کره اوکمزوري مضمون په باب پريکړه کول، هره ليکنه او شعر د پاليسۍ په ليد سانسورول، ډيزاين چارو څاراوتنظيمول، زياتره وخت دشپې تر دوه بجو ناسته اوکار کول، کله په شپو، شپو دکار اوزيارله امله ذهن ،قلم اوحوصله ټول ځواب ورکړي، کله چاپ ته په ليږدکې څوساعته پاته وي، پکې له پنځو ترلسو مخونو پورې دليکنې اړتيا وي، د کوچنۍ تيروتنې په اړه غفلت ياتسامح دلوی زيان اوسرخوږ ي لامل ګرځي ، کله يوه مجله په اتيا يا نوي مخونو کې له چاپه ووځي، که چا ته پکې لس دولس ليکني ګټورې ښکار ي او يوه نيمه ليکنه يې دمزاج نه لږ کږه يا په طبعه برابره نه وه، هغه ته ټوله بې ارزښته وې !

لنډه دا دمجلې ، ورځپاڼې چلول دومره اسان کار ندی څومره چې لوستونکي په باب يې ژر قضاوت اوپريکړه کوي، فکر کوو په دې اړه دنور سرګزشت را سپړل به ضروري نه وي، ولې زمونږ مخکې دماضي په ځای راتلونکی دی، دماضې نه قدم په قدم لرې وځو اومستقبل ته نژدې کېږو، راځئ! مستقبل ته اوګورو! دپيل هغه خبره چې دنيا دار العمل ده، زمونږ په ذمه کوم کاراو خدمت دی، هغه دبڼونو او چمن په غاړو نه، بلکې داغزيو له بره تګ غواړي، مونږ سره الله (جل جلاله) داوعده نده کړي چې خامخا به هغه مونږ ته ددنياوي ژوند ټول راحتونه او اسباب برابروي، ژوند دجنګ تود ډګر دی، دکار او خدمت معنی داده چې دتورو اونېزو سيوري لاندې هم ترې مخ په بله تاونکړو ، دسمندر څپو کې لامبو وهونکی ممکن ځان ته دنجات لار پيدا کړي خو دساحل په غاړه دسمندر څپوته دپای په هيله ناست تن شايد له انتظار نه سيوا بل څه ونه مومي، دبڼونکي خدای ښنلي استعدادونه ددې په ځای چې معطل پاته وي غوره ده چې دملت دبيدارۍ او ازادۍ په ښه وکارول شي، دسمند ر څپو دپای په هيله انتظار کولو په ځای سمندرکې دپوريو تو تدبير اوفکرغوره دی ،په ماضې کې دبحث اوغږېدو په ځای غورده چې د مخکي تګ او مستقبل په پړاونو فکر وشي ......!

# ټاکنې څومره د بریالیتوب چانس لري؟

شاهد 'غزنیوال'

**د سر خبرې :**

روان میلادي کال د افغانستان د یرغل په ۱۳ کلن تاریخ کې نهایت حساس او پر اهمیته کال دی.

د سږ کال په اپریل کې به د یرغلګرو له دستور سره سم پلان شوې انتخاباتې ډرامه نمایش ته وړاندې کیږي او د همدې کال په پای کې به ټول راغلي یرغلګر په ځوږ نده سر له افغانستانه وزي.

بهرني یرغلګرو چې د خپل ۱۳ کلن اشغال پرمهال په افغانستان کې په پوځي، سیاسي، فکري او فرهنګي پروژو کومه پانګونه کړې په داسې حال کې ترې په شا کیږي چې هیڅ لاسته راوړنه ترې نه لري.

له امنیتي او پوځي اړخه بهرني یرغلګر د ارګ او امریکاسفارت په تکاویو کې ځان خوندي نه ګڼي.

له اداري اوسیاسي اړخه یې تحمیلي نظام په نړیواله کچه په فساد کې ډوب دی.

او له فکري او فرهنګي اړخه مسلمان افغانان د دوی راوړې مفکورې ته د ناولې غربي نظریې په سترګه ګوري

په افغانستان کې د امریکایانو، ناټو تړون او ټولو بهرنیانو د ۱۳ کلن پوځي یرغل یوازینی محصول په اصطلاح افغان ملي اردو دی کوم چې د دوی په وینایي کلنی لګښت ۶ملیارده ډالره اټکل شوی دی.

امریکایان او نور ایتلافي اندیوالان یې په هره خارجي او داخلي غونډه کې دا غوږې کوي چې زمونږ په لاس روزل شوی افغان ملي اردو کولای شي زمونږ په نه شتون کې د دښمن (طالبانو) مقابله وکړي ، خو اوس د ضرورت پرمهال یې دهغو روزل شویو پوځیانو مجهزوالی هم مالوم شو چې له خپلو ټولو پوځي تجهیزاتو او پرمختللیو تسلیحاتو سره سره د ارګ په خوله کې د څلورو توفنګچه لرونکو مجاهدینو د مقابلې ځواب نشي ویلای ، او لوړ رتبه افسرانو یې په خپله خوله اعتراف کوي چې مونږ د مجاهدینو ددغه ډول پیچلیومحاربوي تکتیکونو د مقاومت توان نه لرو .

## په دغسي خطرناکو امنیتي شرائطوکې د ټاکنو تر سره کیدل څومره شوني دي؟

پر ته له دې چې انتخابات او د هغو د ترسره کولو کیفیت د اسلامي علماوو تر منځ یوه اختلافي موضوع ده د افغانستان په اوسنیوخطرناکو امنیتي شرائطو کې د هغو تر سره کول ناممکن کار ګڼل کیږي.

ځکه د انتخاباتي اصولو له مخې ولس ته باید ترهرڅه وړاندې داسې یوه پر امنه فضاء برابره شي چې هغوی وکړای شي په خپله خوښه د خپل مورد نظر کاندید په ګټه رأیه وکاروي، خوپه افغانستان کې اوس په ټولیزه ډول ټول ولس د

بهرنیانوله لوري یرغمل دی او هیڅ څوک په خپلواکه توګه د خپلې رايې کارولو واک او صلاحیت نه لري.

د بېلګې په توګه حامد کرزی د هیواد دلومړی نمبر مشر په حیث له تیرو څلورو میاشتو راهیسي په اجباري ډول د یرغلګرو لخوا دیته اړیستل کیږي چې له هغوی سره امنیتي تړون لاسلیک کړی ، د کرزی لخوا د انکار له کبله نوموړی تر سخت فشار لاندې نیول کیږي او د مرستو بندولو اختارونه ور کول کیږي،چې دا په حقیقت کې د یر غلګرو تر اشغال لاندې د ټولو افغانانو د عدم استقلال اونه خپلواکي تر ټولو روښانه ثبوت دی.

څکه په یوه هیواد کې چې د هغه دسر سړی خپلواک اوخپل اختیاره نه وي ، نو هلته به نور حکومتي منسوبین او عادي کلیوال څرنګه خپلواکه وي اوڅه ډول به په خپله خوښه د خپلې خوښې کاندید ته رایه ور کړي .

## د کاندیدانو ټاکل اوبریالیتوب د بهرنیانو قبلي پریکړه ده نه ولسي رأیې

په دې کې هیڅ شک نشته چې روان انتخاباتي بهیر په مجموع کې د بهرنیانو دیوې قبلي پلان شوي پروسې په حیث تر سره کیږي نه د واقعي خپلواکو ،شفافو او عادلانه ټاکنو په توګه .

څکه په دې ټاکنو کې محوري کاندید زلمی رسول دی کوم چې په پوره ناخبري کې دنورو جهاتو له لوري ولسمشریزو انتخاباتو ته په تحمیلي ډول کاندید شوی او دی خپله د خپلې کاندیتوري په برخه کې هیڅ رول نه لري.

خو د دې باوجود بیاهم ټول خلګ د سر په ستر ګو وینې چې په دولتي سطحه د نوموړي د بریالیتوب لپاره څومره کوښښونه کیږي ، تر دې چې حامد کرزي خپل ورور قیوم کرزی مجبور کړ چې د نوموړي په ګټه تر خپلې نوماندې تیرشي ، همداراز د ولسمشریزو ټاکنو لپاره دوه نور کاندیدان جنرال عبدالرحیم وردګ او نادرنعیم هم د کرزي لخوا مأمورشول چې د زلمي رسول په ګټه له خپلې نوماندې لاس په سرشي.

کوم کسان چې تر اوسه د کرزي په مخفي دستور د زلمي رسول په ګټه تیر شوي هغوی هم په سیاسي اوهم په اجتماعي لحاظ تر زلمي رسول د زیات نفوذ او وجاهت خاوندان دی ، خو داچې د پریکړو او دستور ور کولو واک د بهرنیو لورو په لاس کې دی نو هغوی بې چون اوچرا د یوه داسې چا په ګټه تر خپلې نوماندې تیریږي چې خپل د انتخاباتي بهیر ملګري یې بې ناموسه او ریموټي کاندید بولي.

له زلمي رسول څخه د کرزي ملاتړ تر دې کچې رسیدلی چې د مارچ دمیاشتې په ۲۳ د ټاکنو د خپلواک کمیسیون ویاند نورمحمد نور ازادي راډیو ته وویل چې د پکتیا ولایت چارواکي په ښکاره د زلمي رسول په ګټه له دولتي وسایلو او امکاناتو څخه استفاده کوي .

نوموړي په همدې مرکه کې وویل چې په پکتیا کې د دې ولایت والي جمعه خان همدرد،دهغه سکرتر او نور دولتي کار کوونکي په ښکاره د زلمي رسول لپاره کمپاین کوي او دهغه د کمپاین لپاره له دولتي وسائلو او امکاناتو څخه کار اخلي حال

داچې د ټاکنیزو مقرراتو له مخې هیڅ دولتي چارواکی حق نه لري چې د کاندیدانو په کمپاینونو کې ګډون وکړي او یا دولتي امکانات د هغوی په واک کې ورکړي.

کرزي د ولسي جرګې د نوې تقنیني دورې د پیل په مراسمو کې وویل چې زه له بهرنیانو غواړم چې د افغانستان په انتخاباتو کې لاسوهنه ونه کړي، په همدې مهال د ولسي جرګې په تالار کې یو شمېر ناستو وکیلانو پرې ږغ کړ چې تاسو هم باید د کوم مشخص کاندید حمایت ونه کړئ! چې دهغوی موخه له زلمي رسول څخه د کرزي ملاتړ وه.

کرزي د وکیلانو په ځواب کې وویل چې له یوه.نیم کاندید پرته، چې په حکومت کې ملاتړ نه لري، د نورو ټولو کاندیدانو ملاتړ کوونکي په حکومت کې شته.چې د کرزي دغه ځواب په حقیقت کې له زلمي رسول څخه د ده د ملاتړ ضمني اعتراف وه.

## روان امنیتي وضعیت پر انتخابې بهیر څومره اغیز لرلای شي.

له کله چې یوه میاشت تر مخه د ولسمشریزو ټول ټاکنو لپاره انتخاباتي سیالۍ پیل شوې تراوسه د هیواد په مرکز او ولایتونو کې د مجاهدینو پوځي عملیاتو هم ورسره زور اخیستی تر دې چې ځینو ولایتونو ته ټاکنیز مواد په الوتکو کې وړل کیږي او رژیم له خپلو ټولو هغو ادعاګانو سره چې د انتخاباتي بهیر د امنیت د تأمین لپاره یې کوي نشي کولای چې دځمکې له لارې دانتخاباتي کمپاینرانو او دهغوی دلیږد وونکو توکو امنیت خوندي کړي.

که څه هم چې دفاع او داخله وزارت د انتخاباتي بهیر د امنیت ساتلو لپاره د ۴۰۰ زره امنیتي ځواکونو د توظیفولو اعلان کړی او په ټول هیواد کې د انتخاباتي مرکزونو دتأمین ذمه وهلې، خو خپله د انتخاباتو خپلواک کمیسیون د هغو په خبرو باندې باور نه لري او وایي چې د انتخاباتي مرکزونو په اړه چې کوم ارقام امنیتي ارګانونو موږ ته راکړي، او په هغو کې د هیواد په بیلابیلو برخو کې ناأمنه مرکزونه مشخص کړي ول، هغه ارقام دقیق نه دي او دناأمنه مرکزونو شمیر ترهغه ډیر زیات دی چې دوی موږ ته په ګوته کړي ول.

په دې اړه خپله د ټاکنو د خپلواک کمیسون ویاند نورمحمد نور د مارچ دمیاشتې په ۲۷ له رسنیوسره په څرګندونو کې وویل چې د کورنیو چارو وزارت موږ ته له ۶۷۷۵ مرکزونو څخه یواځې ۳۹۶ مرکزونه ناامنه معرفي کړي ول خو زموږ خپل معلومات دا دي، چې د کورنیو چارو وزارت ارقام په دې اړه دقیق نه دي؛ځکه نورهم ډیر داسې مرکزونه چې هغه د طالبانو لخوا ترجدي ګواښ لاندې دي.

نورمحمد نور په دې اړه له ازادۍ راډیوسره په مرکه کې وویل چې موږ خپل یو شمېر کتوونکي د رایې ورکولو مرکزونو د وضعیت څیړلو لپاره سیمو ته ولیږل چې دهغوی دعیني مشاهداتو ترمخه دناامنو مرکزونو شمېر ډیر زیات دی چې له امله یې کیدای شي د انتخاباتو په ورځ یو شمېر مرکزونه تړلي پاته شي.

د نور محمد نور د خبرو په تائید د مارچ دمیاشتې په دیرشمه د ټاکنو د کمیسیون د دار الانشاء رئیس امرخیل هم وویل چې د انتخاباتو د نیټې په رانیږدیکیدوسره پرپخوانیو ناأمنه مرکزونو نور هم وراضافه شوي چې مجموعي تعداد یې ۷۴۸ مرکزونو ته رسیږي او نورهم دزیاتیدلو احتمال لري.

## نړیوال څارونکي د نا امنیو له وجې انتخاباتي بهیر نشي څارلی.

د انتخاباتي مرکزونو د امنیت د نه خوندیتوب تر څنګ د انتخاباتو بهرني څارونکي او د انتخاباتو د کمیسیون کار کوونکي هم د انتخاباتي بهیر څارلو او په هغو کې کار کولو ته زړه نه ښه کوي.

وروسته تر دې چې د کابل په سرینا هوټل باندې د مجاهدینو د یوه تکتیکي برید په ترڅ کې دانتخاباتو د څارونکې ډلې (اېن ډي اي) یا نېشنل ډیمو کریټک انسټیټیوټ نړیوالې ادارې څلوربهرني غړي ووژل شول له دې سره سم د یادې مؤسسې ټول کار کوونکي له افغانستانه ووتل.

د هغه په تعقیب چې مجاهدینو د دارالأمان په سیمه کې د ټاکنو دخپلواک کمیسیون پرولایتي دفتر او په شپږمه ناحیه کې د روټس اف پیس (Roots of Peace) بهرنۍ موسسې پر میلمستون برید وکړ نو د اروپایي اتحادیي بهرني ناظرین کوم چې لاهم د انتخاباتو د څارلو په هیله په افغانستان کې پاتې ول، له خپل تصمیم څخه صرف نظر او له کابله د وتو په فکر کې شول. تر دې چې د مارچ د میاشتې په ۳۰ نیټه د ټاکنو د نظارت او څارنې لپاره د اروپایي اتحادیې د ناظرینو تر څنګ د ازادو ټاکنو لپاره د اسیایي نېټ ورک ناظرین (ANFREL)، په اروپا کې د امنیت او همکارۍ نړیوال سازمان ناظرین (OSCE) او د نورو نړیوالو سازمانونو لسګونه څارونکو له افغانستان څخه د بیر ته وتو پریکړه وکړه

د بهرنیو ناظرینو د دغې پریکړې خبر د مارچ دمیاشتې په ۳۰ نیټه پژواک خبرې اژانس هم خپور کړ او د یادو ادارو د یوې سرچینې په حواله یې ولیکل، چې د طالبانو د بریدونو له امله په بهرنیو ناظرینو کې وېره خپره شوې ده چې له همدې کبله به

په راتلونکو ورځو کې ډېرى ناظرین افغانستان پرېږدي او خپلو اړوندو هېوادونو ته به ستانه شي.

پر سرینا هوټل تر بریده وروسته د اروپایي ناظرینو ډلې ویلي وو، چې دوی له افغانستان څخه دوتلو اداره نه لري.

خو کله چې دهغه په تعقیب د مجاهدینو د عملیاتو لړۍ تیزه شوه نو د نوموړې اداري کار کوونکو هم د کابل پرېښودلو تصمیم نیولی چې د غه کار د انتخاباتو د داخلي کارمندانو پر روحیه هم سخت اغیز غورځولی دی.

د افغانستان د ازادو او عادلانه ټاکنو بنسټ (فیفا) ویاند فهیم نعیمي خبري رسنیو ته ویل، که چېرې نړیوال ناظرین له افغانستان څخه وځي، نو دا به د راتلونکو ټاکنو پر روڼوالي او د افغاني څارونکو پر روحیې سخته منفي اغېزه وکړي.

## نتیجه :

په افغانستان په تیره کابل کې فوق العاده بیړني حالت ته په کتوسره سړی ویلای شي چې د یرغلګرو او د هغوی د ملاتړو لخوا د انتخاباتو ترنوم لاندې پیل کړې ډرامه مخکې ترمخکې له مطلق ناکامي سره مخ ده؛ ځکه ټول ولس وینې چې د دوی له لوري تعین شوي ټاکنیز مرکزونه انتخاباتي مرکزونه ،نه، بلکې د جګړې دلومړۍ کرښې مورچلونه دي چې د رژیم مورال بایللو پوځیانو دځان ساتنې په غرض ورکې یواځې ځانونه پټ کړي او نور د انتخاباتي کارمندانو او رأیه اچوونکو د امنیت هیڅ توان نه لري.

خو احمق امریکایان او دهغوی بې هدفه ګوډګیان به بیاهم د خپل حماقت له مخې د توظیف شوې میډیا په زور دغه ناکامه پروسه یوه کامیابه او د ولس د رأیو ممثله پروسه اعلانوي او دهغې په نتیجه کې لاسته راغلیو پایلوبه خپلې ناکامې تګلارې ته په افغانستان کې دوام ورکوي چې هغه به په هیڅ صورت د افغانستان او افغان ولس هیڅ درد دوا نکړای شي.

کفی بالموت واعظا



# آیا امریکا تا اخر سال 2014 افغانستان را ترک خواهد گفت؟

ذبیح الله مجاهد

## چیزیکه به مشام میرسد:

اگرچه رئیس جمهور امریکا اوباما اعلام داشت که نیروهای اشغالگرآن کشور، تا اخر سال ۲۰۱۴م از افغانستان اخراج خواهد شدند، وبه اصطلاح سیاسیون امریکایی به جنگ افغانستان خاتمه خواهد دادند!!؟

ولی وضعیت سیاسی کشور، وضعیت سیاسی در منطقه، مطالعه دقیق از پالیسی امریکا ودرک عدم استقرار درسیاست آمریکایها چیزی دیگری را به مشام میرساند.

## ورود نظامی در منطقه:

امریکایها بخاطر اهداف بسا بزرگ در لباس نظامی به منطقه وارد شده اند و میخواهند معادن نفتی در خلیج راکه روبه کاهش است در آسیای میانه تلافی نمایند، تا بدینگونه امریکا را در دراز مدت از مرگ نفتی و در کل بحران اقتصادی نجات دهند.

بعد از سقوط کمونیزم در شوروی سابق، ونیز بعد از نشانهای که در نتائج تحقیقات پیرامون ذخائرنفتی در خلیج نمایان گردید و حکایت از کمبودی روز افزون در ذخایر نفتی عربی می کرد، تشویش امریکایها نسبت به کمبود مواد نفتی در دراز مدت افزایش یافت.در تحقیقات سالهای هشتاد میلادی، کارشناسان امریکایی ثابت نمودند که بعد از هفتاد سال آینده تمام ذخایر در کشورهای عربی می خشکند و امریکا این منابع سرشار ومفت حاصل را از دست خواهد داد، پلانگذاران ارشد امریکا به دریافت ذخایر جدید تاکید داشتند که جوع نفتی امریکا را بعد از سالهای ۲۰۵۰م اشباع نماید.

منطقه آسیامیانه به شمول افغانستان تحت برسی همه جانبه کارشناسان امریکایی قرار گرفت و به گونه جدی اقدامات را زیر دست گرفتند که تا هفتاد سال آینده این منطقه سرشار نفتی، مانند کشورهای خلیج به ساحه نفوذ مستقیم امریکا مبدل گردد، و حین نیازمندی به دلخواه امریکا قابل استفاده ایالات متحده باشد.

## چیزی را که باید انجام داد:

بخاطر پلان گذاریی که منتج به نفوذ امریکا از لحاظ سیاسی، نظامی و اقتصادی درآسیا میانه گردد، طراحان پالیسی خارجی امریکا از دو حزب مقتدر آن کشور (جمهوری خواهان و دیموکراتها) به کار گماشته شدند، تا تمام راه های را که امریکا را در هدف دراز مدت( حاصل نمودن نفت از آسیا میانه) یاری می نماید تحت برسی قرار دهند ونیز موانعی را که جلو نفوذ مستقیم امریکا را بر منطقه می گیرد مشخص سازند.

## برچیدن خطرات:

در نتایج ریسرج کارشناسان هردو حزب متداول امریکا(جمهوری خواها و دیموکراتها)، دو کتاب تحت

عنوان (Political America and Political Islam ـ Islam and the United States) به چاپ رسید که پالیسی خارجی امریکا به خصوص دربخش اسلام سیاسی و طرق جلوگیری از آن را هرکدام به نوبه خود به احزاب خود پیشنهاد کرده بودند.

دراین کتاب ها عموما دو چیز قابل بحث بود:

۱ـ موانع بر سر راه برای تعمیل پالیسی خارجی ایالات متحده.

۲ـ اهداف مهم که باید در نتیجه پالیسی امریکا به دست آید.

ـــ بعد از سقوط کمونیزم در شوروی سابق، امریکا دشمن بالفعل نه دارد، بدین گونه میتواند به شکل یکتاز درجهان، پالیسی خارجی خود را که بیشتر استعماری است تطبیق نماید، ولی دشمن بالقوه را نه باید از نظر انداخت، دشمن بالقوه برای ایالات متحده اسلام سیاسی است، به همین منظور، بحث ها در دو کتاب فوق الذکر اختصاص داده شده اند که از نامگذاری و عناوین آن واضح میگردد.

## اسلام باید تقسیم و جدیدا تعریف گردد:

همچنان در یک سلسله مقاله های سیاسیون وطراحات پالیسی امریکا نیز نکات ذیل به برسی گرفته شده اند: اسلام به گونهء یک دین نه باید از آن انکار صورت گیرد، نه باید با وی چنین مخالفت کرد که موجب شورش اسلامی در جهان گردد و ما را به انجام شوروی سابق و شکست فلسفه کمونیزم دوچار نماید.

ولی اسلام را باید تقسیم کرد، اسلام نورمال و اسلام سیاسی.

ـ اسلام نورمال عبارت از اسلامی است که با منافع امریکا و غرب هیچ مشکلی ندارد، حتی سعی می نماید تا غرب گرایی را با اسلام آشتی نموده ودر خدمت ترویج فرهنگ غرب قرار گیرد، این نوع اسلام را باید بیشتر ترویج نمود، با آن اظهار دوستی وعدم مخالف کرد، وآن را باید قسمی تعریف نمود که چهارچوب نظام سیاسی در آن جای نداشته باشد، ذهنیت های پیروان آن اسلام باید قبول نمایند که اسلام مثل مسحیت دینی است که بیشتر به زندگی شخصی افراد تعلق میگیرد، ارتباط بنده را با خدا قایم می نماید ومحدوده فعالیت آن بیشتر مساجد و خانه های مسلمانان اند.

ـ دوم اسلام سیاسی است، اسلام سیاسی را باید تقبیح نمود و آن را بد جلوه داد، اسلام سیاسی را باید چیزی وانمود کرد که اصل واساس در بنیادهای دینی ندارد، زندگی بشریت را با مخاطره مواجه میسازد، خواهان سیاست بسیار خطرناک (پان اسلامیزم ـ اتحاد بین الاسلامی) است، و با غرب هیچ همگرای و آشتی را نه می پذیرد، درمورد حقوق بشر مشکلات جدی را ببار می آورد، جزاهای غیر قابل پذیرش را به مجرمین تجویز میکند، چنین اسلام را باید تا حد توان بدنام ساخت و پیروان آنرا افراطیون حتی مجرمین بین المللی دانست.

## موانع بیشتر:

کارشناسان امور پالیسی خارجی امریکا کشورهای چین، روسیه و ایران راکه منطقهء زیر حدقهء امریکا (آسیامیانه) را از چنگال امریکا به دور نگه میدارند، تشخیص داده اند.

ـ بخاطر ایجاد مشکلات برای کشور چین باید مسئله تایوان را بیشتر توسع داد و از آن حمایت کرد، جامعه غربی را باید با حمایت تایوان تشویق نمود، اقتصاد تایوان را تقویت بخشید و در صورت معامله با کشور چین باید از موقیت تایوان استفاده اعظمی کرد.

ـ قبلا باید روسیه را مقروض امریکا وجامعه غربی نمود، با بعضی از کشورهای منطقه که با روسیه روابط

تنگاتنگ دارند ونیز منطقهء تحت نفوذ روسیه شناخته میشوند ، روابط امریکا و غرب را تقویت بخشید ، بدین وسیله در حین عکس العمل روسیه در برابر پیشروی امریکا وغرب باید با روسیه معامله سیاسی نمود ، ورنه توسط فشارهای بین المللی روسیه را از جلوگیری امریکا به منطقه متقاعد ساخت.

ـ ایران را هنوز هم باید تحت تحریم های اقتصادی نگهداشت، شناخت منطقوی ایران را باید محدود ساخت، نفوذ ایران را باید تحت کنترول درآورد و کشورها را علیه رژیم ایران باید بسیج نمود.

## هجوم نظامی نیازمندی جدی:

ازهمه بیشتر نیرو نظامی را باید به منطقه انتقال داد ، قبلا باید تمام موانع را که صد نفوذ امریکا میشوند ازمیان برداشت، سپس از مؤقیعت افغانستان باید آسیا میانه را زیر کنترول نظامی درآورد.اکنون ما درک میتوانیم که یکا یک تمام حرکات غرب به خصوص امریکابخاطر تعمیل پالیسی درازمدت آن کشور در کار است.اشغال افغانستان از قبل و حرکات مذبوحانه بخاطر تداوم جنگ در افغانستان ، پا فشاری بر باقی گذاشتن نیروهای نظامی در ۹ پایگاه در افغانستان ، شدت تحریم ها بالای ایران دست درازی امریکا وغرب در اوکراین ، حکومت اوکراین را سرنگون ساختن و تجزیه آن کشور ، اخلال مناسبات سیاسی با روسیه بر سر شبه جزیرهء کریمیا وسایر تحرکات امریکا وغرب در عموم دلالت بر آن دارد که امریکا به زودی نه میخواهد کشور ما افغانستان را ترک نماید و نظامیان اشغالگرخود را از افغانستان اخراج نمایند.

امریکا بنام جنگ علیه تروریزم دقیقا همان جنگ به ضد اسلام سیاسی را دنبال می کند.

## نتیجه چه بر می آید:

از تحلیل وضعیت کنونی با انطباق سیاست درازمدت امریکا چنین برداشت میشود که امریکایها نه میخواهندبه میل خود افغانستان را از نیروهای اشغالگر تخلیه نمایند ، البته سعی دارند که ذهنیت منفی در آمریکا را نسبت به جنگ افغانستان تغیر دهد ، شماری از نیروهای خود را اخراج نموده و آن را اعلام دارد.

ولی عملا تعداد زیادی از نیروهای خود را در ۹ پایگاه در خاک افغانستان باقی خواهد گذاشت ، با اخذ موافقه اداره کابل ولو که بعدا از انتخابات باشد ، مستقر ساختن نیروهای خود را در کشور ما قانونی خواهد دانست ، حمایت بین المللی را نیز برای این هدف به دست خواهد آورد ، ذهنیت منفی تعدادی زیادی از امریکایها را کی خواهان اخراج عملی نیروهای امریکا از افغانستان اند توسط تبلیغات تغیر خواهد داد ، تلفات وارد شده به نیروهای امریکایی رابعد از اعلام اخر جنگ هرگز نه خواهد پذیرفت، ونیز نه خواهد گذاشت چنین خبرهابه رسانه ها راه یابد.

اداره کابل به خصوص عساکر، پولیس و سائر ادارات امنیتی آن اداره را در کمربند محافظوی پایگاه های خویش قرار خواهد داد ، عوض امریکایهاقیمت تلفات جانی را افغانهابخاطر کسب چند پول خواهدپرداختند ، بدین گونه امریکا جنگ در افغانستان را هنوز هم به درازا خواهد کشید.

قابل درک است که افغانهای غیور هرگز مجال آرام و استراحت را به اشغالگران تحت هر عنوانی که باشد نه خواهد دادند ، مگر طبعا قربانی ها در این راستا زیاتر خواهد شد.

# دهېواد په مطبوعاتو کې دعالمانو ونډه

مفتي حبيب الله قاسمي
ددیني علومو مدرس اوڅېړونکی

**پیلیزه** :

نبوي حديثو عالمان دپيغمبرانو عليهم السلام وارثـان بللي دي چې دهمدې وارثـت لـه امله ديني لارښوونې پر علماوو داخبره فرض بولي چې دوی به دهر پېر (عصر) مسلمانانو ته ددين ضروري احکام رسوي، ځکه خو عالمان ددغه ستر ديني مسوليت سرته رسونې ته زيات اندېښمن وي او ددين دبلنې په لاره کې له ټولو هغو لاروچارو اووسايلو کار اخلي چې لـه دوی سره ددغـه ستر خدايي مسوليت پـه سرته رسولوکې مرسته کوي په دغه وسايلو کې يوه ښکلې اوسپېڅلې وسيله ((قلم)) دی چې په مرسته يې عالمان پـه مطبوعاتو کـې پـه دې هيله برخه اخلي چې ددين پيغام مسلمانانو ته په ښه توګه ورسيږي .

زموږ دهېواد دمطبوعاتوپـه تېر يونيم سل کلن ژوند کې ګڼو عالمانو دمطبوعاتو پـه خپرېدا ،غوړېدا او پنځېدا کې نـه يـوازې داچې ستره ونډه لرلې ده، بلکې پـه دې لاره کې يې کړاوونـه هم ګاللي دي ،چې ددې ډګرپـه لومړنيو ميړنيو اوبنسټ اېښودونکوکې سيدجمال الـدين افغـان او مولـوي عبـدالروف خـاکي يادېږي. سيدجمال الدين افغان دلومړي ځل له پاره پـه هېواد کې دلومړنۍ جريدې ((کابل))بنسټ کېښود

اوخاکي صاحب بيادهېواد دمشهورې جريـدې ((سراج الاخبار)) دتاسيس وياړ لري .

ددوی پلونه لاړنګ نه وو چې دې ارزښناک ډګرته نور نوي ځوان عالمان دخدمت اوچوپړ له پاره پـه زيات اخـلاص اوتـوده مينـه راووتـل چې نومونـه يـې زمـوږ دهېواد د دژورناليزم په تاريخ کې نه يوازې ځلانده دي بلکې ددې ډګر لومړني مخکښان ګڼل کيږي چې ددوی دنـوملړ (فهرسـت ) پـه سـرکې مولـوي عبدالواسـع کندهاري ،مولوي احمدجان سوداګر اودده زوی مولوي محمدسرور واصف ، مولـوي صـالح محمـدهوتک ، مولوي غلام محي الدين افغان او مولـوي برهـان الـدين کشکي نومونه يادېږي .

يـادو عالمـانو دهېـواد دآزادۍ لـه پـاره دسـختو کړاوونو او زندانونو ګاللوترڅنګ په سختو شرايطوکې ددينـي بلنـې او دهېـواد دخپلـواکي لـه پـاره نـه يـوازې قلمونـه پـه مشـهوره جريـده ((سـراج الاخبـار)) اونـورو جريدو کې وځلېدل بلکې ترڅنګ يې دپښتوادب دودې اوپرمختګ له پاره بنسټيز کارونه ترسره کړي دي چې

دراتلونوکي نسل له پاره یې په دې ډګر کې لومړني بنسټونه کېښودل . خدای پاک دې وبښي .

په شاهي دوره کې دغه لړۍ تردوی وروسته نورو عالمانو هم وپالله اوپه خپلو هڅو یې دغه ډګر ځلانده اودیني رنګ رنګین وساته چې ددې لړۍ په وروستنیو عالمانوکې ددوه عالمانو نومونه دنورو په پرتله زیات ځلانده اوروښانه دي چې یویې هم مولوی صاحب محمد یونس خالص مرحوم و چې زیاته موده دګردیز د ((وړانګې )) جریدې مسول مدیر پاتې شو ،دغه راز په دې ډګر نور ویاړونه هم لري . بل عالم قلموال عالم یې هم مولوي صاحب رحیم الله زرمتی دی چې هغه مهال په مطبوعاتو کې دمولوی غلام نبي زرمتي په نامه یاد شوی دی ، اودمرحوم داود خان دجمهوریت په دوره کې دعالمانو دیوه اسلامي ګوند ((خدام الفرقان)) له پاره یې د ((ندای حق)) په نامه جریده په سختو ستونزمنو شرایطو کې یوازې مسلمانانو ته ددیني پیغام درسولو له پاره چلوله.

اوس چې وخت زیات تیر شوی دی او زموږ نوی کول ددغوعالمانو له هڅو ناخبره دي اوډیر خلک په دې اند دي چې دمطبوعاتو په ډګر کې عالمانو هېڅ راز خدمتونه نه لري اونه هم په دوی کې ځوک قلموال تیر شوی دی آن چې دژورنالیزم دډګر زده کوونکی نوی نسل هم ورسره نابلده ښکاري له همدې امله یوې داسې لیکنې ته اړتیا وه چې په دې ارزښناک ډګر کې زموږ دعالمانو هیر شوي خدمتونه بېرته وځلوي او دغه راز زموږ خپل نوي ځوانان عالمان وهڅوي چې ددعوت له دغه ارزښناک ډګره ددیني بلنې له پاره ګټه پورته کړي لکه چې مشرانوعالمانو ځولسیزې دمخه په ستونزمنو شرایطوکې داسې کارونه ترسره کړ دي چې په دې لار کې ستر ویاړونه لري اوهغوی ددین له پاره له دې ډګره زیات کار اخېستی دی اوس خو دغه میدان دپخوا په پرتله څوبرابره ډېر پرمختللی او آسانتیاوې پکې رامنځته شوې .اوهغه پخوانی قلم یې اوس بریښنایي شوی دی او دکمپوتر په نامه یې یادوي چې نه رنګ اونه هم کاغذ غواړي او په څو شیبو کې دانټرنیټ له لارې دنړۍ هرې برخې ته رسیږي .

غواړو په دې لیکنه لومړی دهېواد لومړنۍ مشهورې جریدې په لنډ ډول دروپیژنو اوبیابه په همدې جریدو کې زموږ دعالمانو دونډې په اړه له تاسو سره خپل معلومات شریک کړو.

### په افغانستان کې دمطبوعاتو شالید:

دمخه یادونه وشوه چې زموږ په هېواد کې رسنۍ (مطبوعات ) نژدې یونیم سل کاله تاریخ او سابقه لري، چې دسیاسي بدلونوورباندې اغېز لرلی دی، زموږ په هېواد کې دمطبوعاتو لومړنی څرک د نولسمې پیړۍ په پای (۱۲۷۵ل)کې دامیر شیرعلي خان په دوره(۱۲۴۳ل - ۱۲۵۷ل)کې دعلامه سیدجمال الدین په نوښت پیل شو. چې تردې دمه (۱۳۹۳ل دحمل میاشت ددې لیکنې ترلیکلو) یې یوه نیمه پیړۍ بشپړیږي په دې موده زیاتې جریدې خپرې شوې اومطبوعات له ډیرو پړاوونو تېر شوي دي کله له رکود اوکله هم له ازادي برخمن شوي دي.

ددې ډګر دلومړنی بنسټ ایښودونکی اونومیالي میړنۍ سیدجمال الدین افغان په پله یې پل ایښی دی دخپل دغه مسیر له پاره یې زیات کړاوونه اوزندانو ګاللي دي دحقایقو په خاطر یې ژوند له لاسه ورکړی دی، خوبیایې هم له کار لاس نه دی اخېستی، دوی که

څه هم په ظاهر يوازې دژورناليزم دډګر مخکښان ګڼل کيږي خوپه حقيقت کې يې خپل قلم دظلم دمخنيوي اودخپلواکي دترلاسه کولو اودخلکو دذهنونو روښانه کولو لـه پـاره چلـولی دی اوهروخـت يـې دنېـواک (استعمار) اوښکيلاک په وړاندې عام خلک پاڅون ته هڅولي دي، اودسترو پېښو اتلان او شاهدان پاتې شوي دي،دوی پـه دې مـوده دخپـل ګوډومـات اقتصادسره سره دمطبوعاتو بهير تود ساتلی اوپاللی دی .

ددې ډګـر ميړنـي ډيـر زيـات دي خوڅرنګـه چـې داليکنه په دې ډګر يوازې دعالمانو هڅو ته ځانګړې شوې ده له همدې امله ددې ډګر دنورو اتلانولـه روح نه په ډيره ښښنه موږ يوازې دعالمانو هڅې دلته ليکو اوخدای مه کړه معنا يې دا نه ده چې موږ په دې ډګر دنورو سترو انسانانو هڅو اوخواريو ته ددرنښت په سترګه نه ګوروځکه په حقيقت کې عالمانو دهغوی په مټ دغه ستر کارونه اوويارونه ترلاسه کړي دي. [1]

**دهېوادلومړنی نوم ورکې (کابل ) جريده اومسول مدير يې :**

د((کابل)) جريده دافغانستان لومړنۍ جريده بلل کيږي او له ((شمس النهار)) جريدې دمخه خپره شوې ده .[2]که څه هم څېړونکي يې دخپريدا د نيټې په اړه يوه خوله نه دي ،ځيني څيړونکي يې دخپريدا نېټه د امير محمد اعظم خان واکمني ښيي اوځيني نور يې بيا دامير شيرعلي خان د(۱۲۴۲هـ ش ـ ۱۲۴۵هـ / ۱۸۶۳ـ ۱۸۶۶م ) کلونو ترمنځ دوره ګڼي [3] .

((کابـل)) جريـده پـه لـومړي سـر کـې لاس کښـلې (قلمي) وه اوبيا وروسته دکابل په رسمي مطبعه کې خپره شوه اودخلکو ترمنځ يې زيات شهرت وموند ، په پښتو اودری ژبويې مضامين لرل. څرنګه چې ددغې جريدې يوه نسخه هم په لاس کې نشته ځکه خوبې په اړه څيړونکو څه نه دي ليکلي خودومره خبره يې کړې چې: ((دغه جريده بايد دافغانستان دژورناليزم په تاريخ کې دلومړنۍ نوموړکې جريده په نامه ياده کړو)).[4]

**سيد جمال الدين افغان اوپه مطبوعاتي ډګر کې يې هڅې**

سيدصاحب چې افغانستان اواسلامي نړۍ په کچه دمطبوعاتو او ژورناليزم دډګر بنسټګر اوميړنی ګڼـل کيـږي. [5]ټـول څيړونکـي اوتـاريخ اودافغـاني ژورنـاليزم تـاريخ ليکـونکي يـې د((کابـل)) جريـدې سيدجمال الدين افغان نوښتګر اوبنسټ ايښودونکی ګڼـي.[6] راځـئ اسـتاد زريـن انځـور تـه غـوږ شـو: (( سـيدجمال الـدين افغـاني د افغانسـتان دمطبوعـاتو اوژورناليزم له لومړنيو اومخکښو څېرو څخه دی .... ده دشرق غم ځپلي اوښکيل شوي ولسونه په خپلو ليکنو

---

۱ پـه دې اړه ډاکټـر محمـد حليم تنـوير دخپـل ارزښـناک کتـاب ((دافغانسـتان تـاريخ اوخپرونـې)) پـه پـای کـې لـه ۷۵۹نـه تـر ۷۶۶ ښکلي اوپه زړه پورې اوږده ليکنه لري له ټولو سره يې خپله زما موافقه ضروري نه ده .

۲دژوناليزم مخکښان : ۴مخ .اريانا محله ۱۳۳۰ل کال دثور ګڼه ((شمس النهار ))داستاد عبدالروف بينواليکنه. تاريخ معاصر افغانستان دسيد سعد الدين هاشمي ليکنه ۹۲مخ . سيدجمال الدين افغاني وافغانستان کابل. ۱۳۵۵ل .

**۳** دافغانسـتان تـاريخ اوخپرونـې. ۱۴مـخ. سـير ژورنـاليزم درافغانستان کاظم اهنګ کابل مطبعه ۱۳۴۹ل لومړی مخ. شمس النهار مقاله اريانا مجله ۱۳۳۰ل کال دثور ګڼه ((شمس النهار ))داستاد عبدالروف بينواليکنه.

٤دژوناليزم مخکښان : ۴مخ .

**۵** دافغانستان خپرونې : ۱۴مخ .

**۶** دافغانستان تاريخ اوخپرونې دډاکټر تنوير ليکنه ۵مخ .

او خپرونوکې دې راوهڅول چې دخپل وخت د فرعوني قدرت په وړاندې ديرغلګرو پرنګيانو په وړاندې ودريږي ، له خپل حق څخه ، له خپلې آزادۍ څخه په نره ، په میړانه اوپه وينو دفاع وکړي ... دده ژورنالستيکو هلوځلو په برکت په هغه وخت کې تقريبا په ټوله خيتځه نړۍ کې دژورناليزم يومبارز نهضت رامنځته شو ... د کونړ دشنې اوشکلې درې په ښکلاووکې رالوی شوی سيد دخپل وطن مرکز ته راغی ... دانګريزي ښکيلاک په وړاندې يې تبليغ وکړ اوخلک يې دهغوی دظلم په وړاندې راپاڅول داهغه وخت و چې زموږ ګران وطن اودشرق نورتې ډيرې برخې هم ددغوښکيلاک ګرو اويرغلګرو له خوا غصب شوې اولاندې شوې وې ›› [۷]

**دمطبوعاتوارزښت دسيد جمال الدين افغاني له نظره** :

افغاني صاحب له مطبوعات سره بې کچه مينه لرله ، دمطبوعاتو په ارزښت اوګټوريې ډير څه ليکلي دي .[۸] ده به ويل : ‹‹هرامت بايد تل داخلاقو دساتنې اودنيکمرغي پرلور اوله مهلکاتو نه دژغورنې اوله غفلت نه يو وويښوونکی اوله ځوړتيا اويوه ساتونکی اودفضايلو پرلوري يو هڅونکی اودکمالاتو پرلور يوقايد اودرازيلو نه يوايسارونکی اودښو چارو لاروته يولارښوونکی ولري که چېرته له بصيرته کار واخلو اودعقل په ترازوي يې وسنجوو . دامهال موږ دغه صفات له جرايدو او ورځپاڼوپرته په بل چا کې نه وينو . [۹] ››

۷دژورناليزم مخکښان : مخونه ۲، ۳.

۸دمطبوعاتو دارزښت په اړه دنوموړي دمضمون ژباړه تاسو ‹‹دافغانستان تاريخ اوخپرونې ›› کې لوستلای شئ له ۲۷نه تر ۳۱مخ پورې .

۹مقالات جماليه ۱۷مخ ،چې دسيد صاحب دمقالو ژباړه پکې راټولې شوې ده چې ژباړه يې زياته بې خونده ده اوما له کوم بدلون پرته له مخکني اثره راواخېسته.

په يوه ليک کې نوموړي درسنيو له پاره داسې ښکلي اصول بيان کړي: ‹‹ورځپاڼې بايد حقايق اودولس په ګټه شيان خپاره کړي دهرچا نيمګړتيا وښيي او هم يې درملنه وښيي نه داچې له داسې مبالغوډکه وي چې دعقل خاوند يې نه خوښوي ›› [۱۰]

که موخوښه وي نور به له سيد صاحب سره خدای په اماني وکړواودهېواد ددوهمې ورځپاني شمس النهار په اړه به وغږيږو.

**دهېواد دوهمه مشهوره جريده : ‹‹ شمس النهار››**

دشمس النهار جريده چې دسيد جمال الدين افغاني په ابتکار اووړانديز دامير شيرعلي خان دواکمنۍ پرمهال خپره شوه.په هېواد کې دژورناليزم دلومړني عملي ګام په توګه ګڼل کيږي [۱۱] استاد عبدالروف بينوا ليکي : ‹‹په ۱۸۶۸ــ ۱۸۶۹ع کال هغه وخت و چې سيد جمال الدين افغاني ددريم ځل دپاره له خپل ګران هېواد افغانستان نه وتلو ، امير شيرعلي خان ته ورغی اوځينې اصلاحي پروګرامونه يې امير ته وړاندې کړل . چې يوه ماده يې په کابل کې ديوې جريدې خپرول وو اوهمداسبب و چې امير په ۱۲۹۰هـ ق کې دسيد له هغه پيشنهاد سره موافقه وکړه اودشمس النهار دجريدې دخپرولو امر يې صادر کړ... ››[۱۲]

استاد زرين انځور دمرحوم بينوا له مخکنيو خبرو رانقلولو وروسته ليکي ‹‹له همدغه ځايه ده چې دافغانستان دژورناليزم دتاريخ په پيلامه کې دعلامه سيدجمال الدين افغاني دريغ په ډيره ښه توګه

۱۰سيدجمال الدين دطباطباتي راټولونه ۲۶۲مخ .

۱۱دافغانستان تاريخ اورسنۍ . مخ

۱۲په اريانامجله کې داستاد عبدالروف بينوا مقاله ‹شمس النهار › لومړی مخ .

راځرګندېږي »[13] او په دې توګه ویلا شو چې دغه جریده هم د سیدصاحب دهڅلو یوه ځلانده ډیوه وه .

### دشمس النهار جریدې مسول مدیر:

ددې جریدې مسول مدیر که څه هم عبد العلي مستغني یادېږي.خو په دې اړه د«افغانستان تاریخ اوخپروني» کتاب یوه نوې خبره لیکي : «شمس النهار په (۱۲۵۱ل/ ۱۸۷۳م) کې خپره شوه دسید یو شاګرد مولوي عبدالروف خاکي دهغې مسول مدیر و ».[14]

ددغې جریدې لومړۍ ګڼه په دوه مخونوکې پرکال ۱۲۵۱ل / ۱۸۷۳م کې له چاپه راووتله دغه جریده په هفته کې دوه ځله دبالاحصار شمس النهار مطبعې چاپوله .[15]

دغه جریده که څه هم څه ناڅه یادېږي خودژورنالیزم په ډګر کې د«سراج الاخبار» غوندې ځلانده نوم نه لري چې تردې جریدې له دیرش کلن سکوت وروسته دعالمانو په هڅو اولاربنوونه خپره شوه اوپه دې ډګر کې زیات ویاړونه لري . اوس به دسراج الاخبار په اړه له تاسو معلومات شریک کړو .

### دهېواد دریمه مشهوره جریده : « سراج الاخبار» :

«سراج الاخبار» جریده چې ځیرونکي یې دژورنالیزم اومطبوعاتو دبیا داحیاء دوره ګڼي. تردیر ش کلن فرهنګي رکود اوسیاسي چوپتیا وروسته دامیر حبیب الله خان په دوره کې د ۱۲۸۵ل کال د مرغومي په ۲۶مه نېټه خپره شوچې دافغانستان دژورنالیزم دوهمه ارتقایي خپرونه بلل کېږي[12] مرحوم استاد حبیبي دخپلو مستندو معلوماتو په اساس په خپل ارزښناک وروستنی اثر«جنبش مشروطیت» کې ددې جریدې منځ ته راتګ په اړه دعالمانو خواري ستایلي اولیکي چې : « دهغه مهال دکابل ښار ددوه مشهورو مدرسوشاهي مدرسه (دچوپ فروشي جومات دیني مدرسه)اوحبیبه مدرسه (اوسنۍ حبیبه لیسه) چې په (۱۹۰۳م ـ ۱۳۲۱هـ پرانېستل شوې وه ) دو ښېنو او ځېرکو مدرسو عالمانو دوخت امیر ته وړاندیز وکړ چې دیوهانویوه ټولنه (انجمن)دې جوړ شي چې هغه یوه پنځلس ورځنۍ جریده د«سراج الاخبار» په نامه خپره کړي» .

استا د حبیبي وړاندې لیکي : « دعالمانو دغه مخکنی وړاندیز د ۱۳۲۳هـ دصفر په میاشت کې دامیر له لوري لاسلیک شو اوددې لاسلیک څخه اته میاشتې وروسته دسراج الاخبار لومړنی شماره د ۱۳۲۳هـ دذي قعدې میاشتې په ۱۵مه نېټه چې د ۱۹۰۶ میلادي کال دجنوري دمیاشتې له ۱۱مې نیټې سره یې سمون درلود په ۳۶مخونوکې خپره شوه ».[17]

### په «سراج الاخبار» کې دعالمانوونډه :

د «سراج الاخبار» په لومړنۍ ګڼه اودغه راز دخپریدا په دوهمه دوره کې زیاتو عالمانو ونډه لرله خوددې جریدې دلومړنۍ ګڼې امتیار ټول دعالمانو په برخه وي مشر یې مرستیال یې اومسؤل مدیر یې ټول عالمان وو استاد حبیبي وایي : « دسراج الاخبار دانجمن مشر مولوي عبدالروف قندهاري خاکي وټاکل

---

[13] دژورنالیزم مخکښان ۷مخ

[14] دافغانستان تاریخ اوخپروني : ۱۴مخ .

[15] مخکنۍ اخبست خای مخ ۳۸مخ

[12] دافغانستان تاریخ اوخپروني : ۶۵مخ . داکتر محمدحلیم تنویرلیکنه

[17] جنبش مشروطیت ۲۶مخ کې .

شو چې ((خاکي))[۱۸] تخلص يې کاوه چې دکابل دشاهي مدرسې مشر استاد ((صدر مدرس)) اوپه شاهي دربار کې منلی ملا و ، ددې جريدې مرستيال مولوي احمدجان الکوزی و دمنشي(ايديټر ) دنده يې مولوي واصف سرور په غاړه وه ))[۱۹]

## دسراج الاخبار دلومړنۍ ګڼې منځپانګه اودواکمنوغبرګون

دلومړنۍ ګڼې منځپانګه کې داسلامي وېښتابه اودغه راز هغه مهال دانګريزانو داستعمار په خلاف ډېر څه ليکل شوي وو ، استاد حبيبی په خپل کتاب ((جنبش مشروطيت ))کې ددغې جريدې دمنځپانګې په اړه ليکي : ((دسراج الاخبار دلومړی ګڼې مضامين په لاندې ډول وو: سرمقاله يې دمولوی عبدالروف له لوری ليکل شوې وه چې سرليک يې و "يوه خطابه ، يوتمهيد اوسياسي موعظه حسنه ....". په پای کې دمولوي سرور واصف يوه وعظيه قصيده راوړل شوې چې ژبه يې زياته فصيحه ده ))[۲۰]

دغه راز استاد حبيبي دجريدې په لومړی ګڼه دخاکي صاحب لاس کښلې سرمقاله وېښوونکې بولي ، ځکه خاکي صاحب هغه مهال هرڅه درک کړي اودنړۍ له نوي بدلونوسره بلد و ، نوموړي غوښتل چې له دې لارې ګڼ نوی ځوانان دانګريزانو پرخلاف وپاروي اوهغوی ته دازادي درس ورکړي ، چې ددې اخبار له خپريدا سره په سيمه کې دلويې هنګامې اوغوغا جوړېدو ويره کېدله له همدې امله يې دوخت واکمن او په ځانګړي ډول يې په هند کې دبرطانوي حکومت ووېراوه اودوخت واکمن يې سمدلاسمه ددې جريدې په وړاندې غبرګون ښودلو ته وهڅول، هغه و چې دوخت واکمنو دانګريزانو په غوښتنه اواشاره ددغه جريدې دلومړۍ ګڼې له خپريدا وروسته دنورو خپريدو مخه ونيوله او دشپږو کلونو له پاره وتړل شو .[۲۱]

دغه غبرګون طبعي خبره وه ځکه دغه جريدې ترشا دکابل ښار ددوو سترو مدرسو اوپه ځانګړي ډول دحبيبه مدرسې استادان ولاړ وو چې هغه مهال دآزادي ستر مرکز بلل کيده استاد پوهاند استاد رشاد مرحوم ليکي: ((حبيبه دارالعلوم په افغانستان کې دسياسي مفکوري درشد او حزبي تنظيم زانګو ده ، په دې داالعلوم کې ... مولوي سرور واصف خان الکوزی ،مولوي غلام محي الدين افغان ..... غوندې حساس اودراک استادان وو ، دوی استعمار چيانو ته په بده سترګه کتل له ظلمه يې کرکه کوله ))[۲۲]

استادحبيبي ددغې جريدې دتړل کېدا په اړه دسراج الاخبار ديوه نږدې همکار اودازادي دغورځنګ له يوه زيارکښ بابا عبدالعزيز له خولې کاږي : ((سراج الاخبار لومړنۍ ګڼه دوخت دمستبد حکومت له لوري ترسخت کنترول لاندې ونيول شوه لکه چې ويل شوي دي دهند برتانوي دولت دهغې له خپريدا سره موافق نه و اوځکه يې دسراج الاخبار دنورو ګڼو دخپريدو مخه ونيوله))[۲۳]

نوکه څه هم دسراج الاخبار دلومړنۍ ګڼې وروسته ترپنځه کاله پورې خپره نه شوه خواستاد حبيبي ليکي : ((

---

۱۸چې اوسمهال ښه ژباړه دخاورين په معنا راځي ځکه انسان له خاورو جوړ دی اونوموړي خپل نسبت خاوروته کړی چې زياته دعاجزي معنا پکې پرته ده.

۱۹جنبش مشروطيت ۲۶مخ کې .

۲۰جنبش مشروطيت ۲۸مخ. دايران چاپ .

۲۱مخکنۍ اثر .

۲۲دپوهاند رشاد مقاله . دافغان ياد .

۲۳جنبش مشروطيت ۳۰مخ .

خاکي صاحب له دې لارې ځوانانو ته دوېښتابه اوآزادي درس ورکړ اورا تلونکو نسلونو دنومورړي له دې درس څخه دآزادی الهام واخېست اودآزادي نوي غورځنګونه دنومورړي دلارښوونوپه رڼاکې منځ ته راغلل :

عشق ازفریاد ما ، هنگامه ها تعمیر کرد
ورنه این بزم خموشان هیچ غوغای نداشت [۲۴]»

استاد انځورهم داستاد حبیبي خبرې په خپل کتاب "دژورنالیزم مخکښان" کې تایدوي اولیکي: «««مولوي عبدالروف خان کندهاري دهېواد دغه ستر دیني لیکوال اوشاعر دافغانستان دژورنالیزم دودوې له پاره کار هم وکړ اویوداسې چراغ یې بل کړ چې که یوازې یوه ګڼه یې هم خپره شوې خوپه ماناکې دغه څراغ خاموش نه شو اوشپږ کاله وروسته چې د«سراج الاخبار افغانیه» اساس کېښودل شو په حقیقت کې دهمدغه چراغ روښنایي ورانګې وې چې په لویه بڼه یې ظهور وکړ . »»[۲۵]

هو ! رښتیاهم مولوي عبدالروف خاکي دژورنالیزم په ډګر اودغه راز دخپلواکي له پاره کې یوداسې اساس کېښود چې دسراج الاخبار دوهمه دوره دمحمود طرزي ترمشري لاندې پیل شوه دی هم دخاکي صاحب پربنستونو اوپلونو ولاړ ،ځکه محمود طرزی چې که څه هم آزاد خیاله سړی و ؛خو په دې ډګر کې دخاکي صاحب هڅې ستایي او دسراج الاخبار په یوه ګڼه کې خاکي صاحب د دیني علومو ستر استاد او نامتو څېړونکی یادوي اوله کچې وتلي ستاینه یې کوي اوله نومورړي زیات اغېزمن ښکاري [۲۲] ، استاد حبیبي په څېر نامتو محقق او تاریخپوه خاکي صاحب دپښتو دري اوعربي ژبو نامتو ادیب اوستر لیکوال عالم اوشاعر معرفي کوي . [۲۷]

## دسراج الاخبار دوهمه دوره :

دسراج الاخبار دوهمه دوره ددیني عالمانو په هڅونه اوهلوځلو دمحمود طرزي ترمشري پیل شوه اوددغې جریدې ددوهمې دورې لومړنی ګڼه ترشپږ ګلن ځنډ وروسته یوځل بیا د۱۲۸۹ل په مرغومي کې چې د ۱۹۱۱م کال جنوري په میاشت کېدله په کابل کې له چاپه راووتله .

دجریدې ددغه تګلارې په اړه ښوځله امیر حبیب الله خان دجریدې کارکوونکو اومشرانو ته اخطار ورکړ چې په سراج الاخبار کې دې سیاسي مقالې خپرې نه کړې خودجریدې مشرانو دوطن دوستي دغه اخطارونه نه شوای زغملای دهمدې اخطارونو اوننګونو په منځ کې اودجریدې دپخوا په څېر دښکیلاک ګرو په ټکونه اودخپلې خپلواکی په ترلاسه کولو کې له نورو همغږو پوهانو سره جوړه روان و چې له امله یې ډېر ځله دغې جریدې تر یوې اونۍ دزیات ژوند تمه نه لرله . اوددغې جریدې دادارې دشړېدو له پاره هڅې روانې وې اویوو وخت دزیاتې ویرې له امله دغه جریدې دچاپ اونور سامان یې کارونکو ته کور ته له ځان سره یو وړل اوله هغه ځایه به یې دغه جریده خپرولـه اوپه مستعارونومونوبه یې پکې لیکنې کولې. [۲۸]

پاتې په بله ګڼه کې

---

۲۴مخکنی اثر مخ ۳۲او ۳۳مخونه

۲۵دژورنالیزم مخکښان : ۴۴ او ۴۵مخونه .

۲۲په جنبش مشروطیت کې دخاکي صاحب په اړه دمحمود طرزي لیکنه لوستلای شئ.

۲۷ مخکنی اثر مخ

۲۸مخکنی اثر ۶۶مخ . په ژباړه کې له یوڅه بدلون سره .

# دنني جهاد پر مخيون کې

# شاعرانه انځورونه !

د شاهد ليکنه

دلويديځ د نا ببره تاړاک پر خلاف د افغان مسلمان ولس د جهادي خوځښت ځپانده کولو او د دې خاورې د برېيدلي ولس سره د نړۍ د مسلمانانو د خواخوږۍ او همدردۍ په هيجان کې خو په بنسټيزه توګه د جومات د منبر او محراب د خاوندانو جوت او بې بيلګې رانه انځورونه تر سترګو کيږي ، خو همهاله ورسره د شعر او شاعرۍ د خوږې څپې او زړه راکښونکې نغمې ښوال خپل مرموز تخيل او خوږ الهامي غږ غاړه غږۍ کړې ،او لکه د جومات د محراب د امام او د منبر د واعظ زړه تخنونکيو اسلامي لارښوونو او د کفر د جارحيت او اشغال په خلاف يې د اتومې فتوا او غوندې شاعر او د الهام بخښونکيو عواطفو انځورګرهم په خپل حماسي او رزمي جذاب او کشش آميزه غږ د اسلام او هيواد د مير ځمنو ځيګرونه په تېرو او سپنيزو نيزو وهلې او د غشو د(ابابيلو )تر بوږنوونکيو ګوزارونو لاندې يې د اسې ساتلي ، چې د دوئ د بزم او رزم ښکالو يې لا په ستونې وچه کړې او آن د پر مختللې ژير بخني ژورناليزم د طلسم بتکده يې هم په ژغولو ځواکمنه نده .

تاريخ ګواه دی چې د هيواد مسلمان شاعر د خپلې فناني او هد فمندې شاعرۍ او حماسه زيږونکې شعر په خوږلنه خو صيقل شوي ژبه تل د نړيوالو ښکيلاکګرو په وړاندې د خپل روحاني مقتدايانو ( علماوو او طالبانو ) سره په هره د ښته ، دره ،سمه او غر کې اوږه په اوږه د جهاد مورچل تود ساتلی او د ولس په بيدارولو او د اسلام د غليمانو د شومو پلانونو په بربنډولو کې ،بيا دې هدفمند شاعر هغه کردار ادا کړی چې د نني متمدنې نړۍ د هايکو ګانو شعرونو اورومانيت سروالان او ګرد رونۍ آندې يې ګوته په غاښ کړې.

که هغه د پيرنګيانو د پرله پسې درې غبرګو يرغلونو په خلاف د افغان ولس عمومي پاڅون ته هڅول وو ،يا که بيا په (۱۳۵۷ او ۱۳۵۸ ل هـ ل ) کال کې د کمونستانو او روسانو پر خلاف جهاد ته د خلکو پاڅول او يا هم که د همدې زيږيزې پيړۍ په

لومړيو کې دناټو تر چتر لاندې دوينه څښونکيو ښکيلاګرواشـــرباڼو (امريکايـــانو او اروپايـــانو ) د(۲۰۰۱ز)کال دنابيره او نامشروع يرغل په مقابل کې دافغان مسلمان قام اغفال شوي احساسات ويښول او په څپو راوستل وو.

درزم او بزم دميدان دا اتل شاعر تل پداسې برخليک ټاکونکيو شيبو کې دخپل ولس سره څنګ په څنګ دريدلی او دخپل فطري هنر ،روزل شوي فن اوخواږه ترنم په ليزري وړانګو يې داسلام ، وطن او افغان قام دبنسټپالو ميرڅمنو سترګې بريښولي او دشعر په خپله نازکخياله ژبه يې ورته خپل کې پيغام دخپل ننګيال نيکه (امير کروړ سوري) دا وياړنه ورغبرګه کړي چې:

زه يم زمری پر دې نړۍ له ما اتل نشته = په هند و سند و پرتخار او پر کابل نشته

له ما اتل نشته - بل په زابل نشته

غشی دمن مې ځي بريښنا پر مير څمنو باندې=په ژوبله يونيم يرغالم پر تښتيدونو باندی

په ماتيدونو باندې - له ما اتل نشته

زما دبريو پر خول تاويږي هسک په نمنځ او په وياړ= دآس له سوومې مځکه ريږدې غرونه کاندم لتاړ

کړم ايوادونه ويجاړ - له ما اتل نشته

زما دتورې ترشپول لاندې دي هرات او جرم = غرج ، باميان او تخار بولي نوم زما په اودوم.........................

که پرون دمعاصر افغانستان بنسټګر سترفاتح اوپر دين او وطن ميين (احمد شاه بابا )دخپل شعر په ژبه داسې ويل چې:

((ستاد عشق له وينو ډک دي ځيګرونه
ستا په لاره کې بايلي ځلمي سرونه
تاته راشمه زړګی زما فارغ شي
بې له تامې انديښنې دزړه مارونه
که هرڅومې ددنيا ملکونه ډير شي
زما به هير نشي دا ستا ښکلي باغونه
احمد شاه به دغه ستا قدر هير نه کا
که ونيسي دتمام جهان ملکونه

يا که دتورې او قلم اتل خوشحال خان خټک ويل چې:

((دافغان په ننګ مې وتړله توره /ننګيالی دزماني خوشحال خټک يم )).

يا داچې:

لا په خوب کې په لړزه پريوزي له کټه
چې دچا تر غوږ زما دتورې شرنګ وي
لا تراوسه يې ماغزه په قرار نه دي
چا چې ما سره وهلی سر په سنګ دی

نو نن هم الحمدلله دهيواد مسلمان شاعران ديرغلګرو په وړاندې خپل مخالفت ښيې اودا اشغال محکوموي ،چې دبيلګې په ډول به ددريو شاعرانو يادونه وکړو !

دلويديځ يرغل په مقابل کې يوازې نه ،بلکې دوو پرله پسې يرغلونو(کمونيزم اوبيا سوسياليزم )په وړاندې دبغاوت علمبردار ، غزلبول ،ژمن او دافغانستان(حمزه) ، ټولمنلی ،اديب شاعر استاد فضل ولي (ناګار)په ډاګه دا يرغلونه وغندل او دخپل مجاهدانه بغاوت په غبرګ يې دجهاد او خپلواکۍ دلارويانو قافلې داسې بدرګه کړي چې :

## دآزادۍ سبا

استادناګار

جهادروښانه خط دپيغمبر (ص)دی، ځئ چې ځو
دخدای (ج)دازمويني خوږګردی، ځئ چې ځو
ماشوم دبخارا به ترڅو پېټ لولي قرآن
مؤمن ته بس همدازنګ دخطردی، ځئ چې ځو
رابڼوري په تعقيب دي منځني اسيابيا
تکبير کې دي غيبي غوندي اثردی، ځئ چې ځو
افغانه! په شانه ځې، خوچې ونه خوري تيندک
حساب دګردااسلام نن ستاپه سردی، ځئ چې ځو
دبدرمېلمانه نه دي ختلي بياآسمان ته
ملاتړ دي دملکولوی لښکردی، ځئ چې ځو
اسلام له منځه وړه شي، ديهودوپه مشرۍ
وهلي يې اهتمام ته روس ټټردی، ځئ چې ځو
ژوندي چې دی خښ شوی دهغه شهيدبچی
له خدايه! پس يې ستاپه لورنظردی، ځئ چې ځو
هر ګام دي زېړوي له رعبه ډکې هنګامې
ماڼيوکې دکفرشوروشردی، ځئ چې ځو
داستادشومه دم نوراني کړښي دمرمۍ
دليکوسپيدوشاته سپين سهردی، ځئ چې ځو
ختيځ کړي په «لويديځ چاقو» پرېشن دخپل ناسور
حيران دشرم داغ ته لروبردی، ځئ چې ځو
پرمخ ځئ شاه زلمو! دځمکې راکاږئ تناب
محشرپه هديره کې دقيصردی، ځئ چې ځو
ناګاره! په غزل ځاره افق دي دهيواد
په ځرک دآزادۍ دسبالمردی، ځئ چې ځو

دوو يرغلونو (روس او امريکا) پرخلاف دجهاد لاربنود علمبردار، دسپين غر د دنګو مورچلونو شاهين، دبې داغه ماضي څښتن محترم مولوي محمد يونس خالص رح پداسې حال کې چې دنورو علماوو په شان يې دامريکايانو پرخلاف دجهاد اعلان وکړ، خپل يو شمير هغه ملګري چې دده دآند خلاف يې دجهاد پر ځای ديرغلګرو ملګرتوب وکړ، په خپل عالمانه او شاعرانه غږيې ترې داسې خپل برآت وښود:

### پوچ کارتوس

ما وې چې باز دی خوټپوس وختو
په د ووسانو کې دووس وختو
دزړه په وينو مې روزنه ورکړه
چې زړه ترې جوړ کړم خوپپوس وختو
ډير مې ټولنه کې درونډ وتللو.
اخرکې سپک اندی دبوس وختو
په جهادی هدف يې لوبې وکړې
خدايږو دروس څخه چړوس وختو
دامريکا په ډالرو نښېده
دخدای له مرستې نه مايوس وختو
موږ وې دده له بخته مخکې به ځو
خو دي پخپله کې منحوس وختو
خالص له بل چانه ګيله نه کوي
پوچ يې دخپل جيبه کارتوس وختو

دهيواد ستره علمي پانګه، نامتو څيړونکی، اديب او شاعر اکاډميسن استاد عبدالشکوررشاد صيب دامريکا او ناټو يرغل د صليبي تاړاک پيلامه بللې او دخپل شعر په ژبه يې داسې غندلې چې:

## دتودو وينو حمام

ترورېزم دااسلام په ضد پلمه ده
داپلمه دصليبي جنګ پيلامه ده
داټګي ده دابرګي ده دانېرنګ دی

په وینا د مستر بوش صلیبي جنګ دی
د سپین برج اهریمنان د شر خدایې کا
دیزدان د پیروانو سر کوبي کا
ایل شارون دی مقتدي جارج بوش امام
غواړي و نغاړي کمبله دا سلام
تړوني بلېږد د غه چرچ سیانه کشیش دی
دیهود و د ترساد ګټوویش دی
سیناګوک او کلیسا دی لاس یو کړی
خدای و مه کړه د مسجد به کاږي زړی
نیت لري کنښېږدي کعبې ته اټوم بم
ګړو بوي زموږ د مکې ښارچم په چم
مدعي د انسانانو د حقونو
دي ریښې کاږي د بشر د ژوندونونو
دا عجبه د بشر بشر دوستي ده
دا دوستي د بشر نه ده، شر دوستي ده..........

د ژمن ترانه ویونکي ملا فقیر محمد درویش، مظهري، نوبهار، شهید انعام الله خان او نورو......غوندې د ترنم د نړۍ معماران خو هغه دي، چې په خپلو جادوګرو غږونو او موسقیت یې د پاریس، لندن او واشنګټن د سینماګانو کنګرې ماتې او د دیموکراسۍ ډول ته د نڅېدونکیو سندرغاړو د شیطاني غږونو په جال کې د ښتو غرایزو غږوندي یې داسې وشلول، چې بیا به یې څوک کوشیر نه کړای شي او نه به یې څوک په طلسم کې ونښلي.....

او دا ځکه چې:

د بشریت ستر لارښود حضرت محمد مصطفی ﷺ لا خوارلس سوه کاله مخکې د یوه مسلمان شاعر ذوقي پنځوني او له تخیل څخه رازېږېدلي حماسي کلام یا شعر ته د(حکمت) یوه جامع او له محتوی ډکه کلمه کارولي وه او هغه داسې چې:

((ان من الشعر لحکمة (بخاري شریف)) حدیث پوهان د دې جوامع الکلم صلی الله علیه وسلم اطلاقات له ژورو مفاهیمو سرچینه بولي، شعر باندې چې د حکمت اطلاق شوی، دا نو هسې کومه سرسري یا تشریفاتي ښکلایز کلام نه دی، بلکې دلته له علمي تبحر او نبوغ استازیتوب شوی، او لوی سمندر په یوه کوچنۍ کوزه کې په حکیمانه سلیقه ځای شوی، نو ځکه یې په معنی کې نه حدیث پوهان یوه خوله دي، او نه یې ترجمه په یوه لفظ کې مختصر کولای شي، نو دلته ده چې ځیني داسې وایي چې:

حکمت د علم په معنی دی، حکمت هغه رښتني وینا ده، چې له حق سره پیوند وي، حکمت عدل دی، حکمت هغه ګټور کلام دی چې له جهالت څخه پکې ژغورنه شوي وي او ....او.....او....

همداسې به په مسجد نبوي کې حسان بن ثابت رضي الله عنه ته د اسلام ستر پیغمبر حضرت محمد ﷺ پخپله منبر ودراوه، او حسان رضي الله عنه به پرې له رسول الله ﷺ څخه د شعر په ژبه دفاع کوله، او رسول الله ﷺ به د حسان بن ثابت رضي الله عنه په هکله ویل:



# په روان جهاد کې دترنم درنه ونډه !

خبیراحمد م

امریکااودیرغل متحدین یې په افغانستان کې تنهاددې لپاره نه وو راغلي چې هغه افغانان به ختموي اویابه یې مهاروي چې دغیرت اومیړانې علمبرداران دي اوپه رګونو کې یې داسلام اوجهادتوده وینه چلیږي ، بلکې دهغه ویاړمن اصیل افغاني فرهنګ دبیخکنی لپاره یې هم ستري حربي اوپلانونه له ځان سره راوړي و ، له کومه چې په نوموړي فرهنګ کې دافغانانودیني اوملي اقدار سل په سله نغښتي اوسره روح اوجسددي.

خوداللہ تعالی کارونواولورینوته ګوره ، لکه څنګه چې امریکا ، ناټو اونورکفري شیطانان یې په پوځي میدان کې دبې وسو ،بې پیسو اوبې وسلو مجاهدینو دمخلصانه قربانیواوفداکاریو په نتیجه کې ګونډه مال وګرځیدل اوکوکاري یې ټولې نړۍ ته ورسیدي، دغه ډول متعال رب جل جلاله ، دمجاهدینو دفرهنګي ډګر دګوته په شمیروقلموالو ، مجاهدوشاعرانواودحماسودخوږالحانه بلبلانودغږ اوحنجري په توره هم دغرب ، امریکا اوهندوستان له بربنډ اوحیواني تهذیب څخه داسې غچ اوانتقام واخیست او توبه ګاریې وګرځاوو ، چې دامریکادلوی شیطاني لوډسپیکر ( ازادی راډیو ) دیوتحقیقاتي راپورپه مټ چې دعاموافغانانوله څرګندونویې برابرکړی دي حقیقت ته غاړه کیښوده چې دطالبانو فرهنګي هڅي له مقابل لوري څخه څوچنده وسیعي ، چټکي اوولس ته محبوبې دي.

نوموړي راډیوکټ مټ داخبره کړي چې که څه هم د طالبانورژیم د سقوط څخه له یوې لسیزي زیات کلونه کیږي ، خودترانواونظمونو مینه وال یې نه داچې په لیري پرتوسیموکې شتون لري، بلکې ان په پلازمینه کابل کې هم ددوي د ترانو انګازې اوریدل کیږي.

راپورزیاتوي ،دا ترانې د کومې راډیو او یا کومې بلې خاصې رسنې له خوا نه خپریږي، خو ځوانان اوعام خلک یې له ځانو سره په ګرځنده تیلیفونونو اوموټرونوکې اوري او له دې لارې یې نورو مینه والو ته لیږدوي !

که دیرغلګرودفرهنګي هجوم په مقابل کې دمجاهدو قلموالو ، ادیبانواوترانه ویونکو شمیره امکانات اووسایل وسنجول شي مقایسه یې هیڅکله هم نشي کیدلای ، ځکه یرغلګر هره ورځ په میلونوډالر په زرګونورسنیوخاص ددې لپاره لګوي چې دطالبانوغږ اومیړانه څوک وانه وري اوله جهادي تکتیکونوڅخه یې څوک خبرونګرځي.

خو الله تعالی دنوموړي ټولې په قلمونو ، استعدادونو ، ذهنونو ، حنجرواوهنرونوکې دومره اغیزاوقوت ولوراوه چې غلیم یې حیران دریان کړچې طالبان اخیرکومه تکنالوژي اوحکمت کاروي چې دیوې جهادي ترانې اونظم په اوریدلوسره په پرګنوکې دومره اثرغورځوي چې ځوان ، بوډا ،ښځه اوماشوم

ټول یاد سرقربانی ته تیاریږي، یاد مال او یاد مجاهد په حق کې الله ته سرسرتوري او دهغو د کامیابی لپاره بهترینې دعاګاني غواړي.

مونږ ولیدل چې امریکا او شیطاني باندیې، زرګونه چاپي او برښنایي رسنی، چې په هغو کې ورځپاڼې، اونیزي، تلویزونونه، راډیو ګاني او بې شمیره ټولنې او بنسټونه راځي تاسیس کړل او دفن او قلم لرونکي یې ټول پکې راغونډ او مصروف وګرځول، ترڅو هیڅ چاته دا فرصت او مجال په لاس ورنشي چې دا مریکایي یرغل اوناولو موخو په باب یې خوله پرانیزي او دافغان مظلوم ولس مظلومیتونه او کړاوونه ښکاره او برالا کړي.

داسې هم پیښ شوي چې کوم لیکوال او شاعر دیته ندی اماده شوی څو په امریکایي فرهنګي اداري کې عملا کار وکړي، نو دهغه کس لپاره یې د پریمانه ډالرو په مقابل کې شیطاني پروژه او پلان کورته ورلیږلی، څو ذهن او قلم یې په هغه مصروفه شي او په همدې وسیله خپل ضمیر او احساس ته قلف واچوي.

همداډول د استعمارلښکرو دخپل ناولي او مبتذل فرهنګ دخپرولو لپاره په لیري پرتو سیموکې له ټانګونو څخه په میلونو شمسي راډیوګاني په وړیاډول خلکوته وویشلي، ترڅو هغوی شپه او ورځ صرف اسلام دښمنه تبلیغاتو او بې بندوباره موسیقی ته غوږ کیږدي او دجهاد او خپلواکی جذبه یې خدای مکړه خاموشه وګرځي.

ولې په مقابل کې الله تعالی دمجاهدینو په تبلیغاتي وسایلو او په خاص ډول دجهادي صحنو او حماسي ترانو او نظمونو په نشر او تبلیغ کې دومره برکات او تاثیرات واچول چې دد ښمن دزرګونو رسنیو او منحرفو نشراتو ټول خپاره شوي زهر او او فواهات یې ګام په ګام شنډ ، او بې تاثیره وګرځول.

دجهادي ترنم اتلانو، دخپلو پاکو حنجرو په قوت داویاړ او افتخار وګاټه چې دافغانانو لویه برخه دکفرله ابتذال او دلغړي موسیقی له اوریدو او لیدلو څخه وژغوري، داسلام پتنګانو خپل مجاهد ولس ته زرګونه دلنشیني او پرکیفه ترانې او موزون شعرونه دترنم په لحن او ژبه ډالی کړي، دجهاد سپیڅلي پیغام یې ورته ورساوه ، دیرغلګرو د پټو او ښکاره حربو څخه یې خبر کړل او دخپل مظلوم ولس دقربانیو او اتلولیو له عبرت ډک داستانونه او حکایتونه یې ورته په خوږه ژبه وړاندې کړل.

زمونږ د دغو جهادي بلبلانو، ځانګړتیا داده چې کوم شهرت الله تعالی ورکړی او دافغان ولس په زړونو کې یې محبوبیت غزوني کړي، علت یې دا ندی چې خلکو دهغوی څیري دتلویزونو او اشتهاري پوسترونو په پردو کتلی، بلکې دادوی له ایماني اهنګ نه ډکي حنجرې او ملکوتي غږونه وو چې دولس زړونه یې ځانته مایل او خپل وګرځول.

همدغه دیني مینه او محبت دی چې دترنم درویشانو او بې ریا غازیانو دمحدودو وسایلو او سرچینو په مټ دومره لوی رسالت اداکړ ،چې که نن ورځ دهر مومن افغان کمپیوټر او موبایل سري ووینې نو دجهاد دغو علمبردارانو به پکې په سوونه خوږه اوازونه اوله اسلامي سوزه ډکې ترانې پرتې او موجودې وي.

ماخودا هم اوریدلي چې دکفارو او یرغلګرو په مقابل کې چې څومره فدایانو خپلې قیمتي ککرې نذارانه کړي او یایې کوي ،دزیاترو په یادښتونو کې یې داخبره راغلي چې ترټولو رومبي پرې حماسي ترانو اغیزکړي ، بیایې دیني مطالعه کړي او ورسته دالله په لارکې دسرسربازی ته اماده شوي .

دیوه مجاهد ورورحکایت دی چې یوفدایي اتل یې له قربانی ورسته په داسې حالت کې په خوب کې وکوت چې دجنت په بهترینوماڼیو او مقاماتو کې ګرځیده ، خوپه دواړو لاسونو کې یې دوه شیان پورته نیولی وو او ماته یې رابنوول چې زه ورته ځیرشوم په یوه لاس کې یې فدایي واسکټ و او په بل لاس کې یې دجهادي فلمونو او ترانویو هارډیسک نیولی و.

دنوموړي خوب په باب زما خپل تعبیر دا وه چې فدایي خو الله تعالی دخپل جهادي عزم او واسکټ په زریعه دجنت لوړوماڼیو او درجوته ورساوه ، خو دجهادي صحنو او ترانو هارډیسک (پرزه ) مونږ ته دا پیغام راکوي چې ددغو نازولو دقربانیو او سربنندنو نشر او اشاعت په دې نیت چې اسلامي امت پرې خبرشي اوهغو ته دغیرت او شجاعت پیغام ورسیږي اودکفاروزړونه پرې وچووي ، له شک پرته چې لوی اومقبول جهاد دی .

زه دفرهنګي مورچل غازیانو او په خاص ډول دترنم دبڼ بلبلانو ته که هغه مشران دي که کشران، مشهوردي ، که غیرمشهور دازیری ورکوم چې ستاسي دغه جهاد دکفرمورو ربوره کړي ،دشیطان ټول مزامیراو لهولعب مودړې وړي کړي او د۱۴۹اسلام دښمنه هیوادونو غیري مستقیم فرهنګي یرغل ته مو په محدودو امکاناتو تل پاتي ماتي ورکړي ؛نوډاډه اوسی که دالله تعالی مرسته اوفضل درسره وپه اخرت کې به مودرجي سختي لوړي اوله فدایانو څخه هیڅکله کمي نه وي.

دلیل دادی چې دالله نازولی استاځي حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په خپل مبارک ارشاد کې دخپل دور فرهنګي اتلانو او مجاهد وشاعرانو ته داسې مبارک ارشاد کړی: چې دکفارو هجوي اوقبایح بیانوي( «والذي نفس محمد بیده فکانها تنهضونهم بالنبل» ) (

مسند امام احمد جلد ۳ صفحه ۴۲۰ )زمادې په هغه ذات سوګندوي چې دمحمد(ص) ځان اونفس دهغه په اختیارکې دی چې دکفاروپه مقابل کې ستاسې شعرونه داسې لګیږي اواثرلري لکه دغیصي دګوزارپه څیر ) اویالکه چې نبی اکرم صلی الله علیه وسلم خپل صحابي حضرت حسان رض ته وایي ، " اهجهم وروح القدس معک " په خپل کلام او شعر کې دکفارو بدي بیانوه ، ځکه حضرت جبرائیل له تاسره په دغه کار کې یوځای اوملګری دی.

کعب بن مالک چې جلیل القدر صحابي او شاعرو حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم دهغه دیوې پوښتنې په ځواب کې داسې وایي «انّ المؤمن یجاهد بسیفه و لسانه ، والذي نفسي بیده لکأنما ترمونهم( رواه أحمد والطبراني : په تحقیق سره چې مومن به یاجهاد کوي په توره اویاپه ژبي سره اوزمادې سوګندوي په هغه ذات چې زمانفس دهغه په اختیارکې دی چې ستاسې جهاد په ژبې اوشعرسره په کفارو داسې موثراوزیان اړونکی پریوزي لکه دغیسی وار) علمای کرام وایي چې لام په لکأنما کې دقسم دتاکید لپاره راوړل شوی.

په پای کې دالله تعالی دربارته لاس اوچتوم چې زمونږ دجهادي فرهنګي سنګر دخدمت ګارانو ، مخلصینو اوپه خاص ډول هغومیړنیو ته چې خپل لحن اوغږیې داسلام دفاع ته توره اوسپر ګرځولی ، دجهادزمزمي اوانګازي خپروي ، دشهیدانو کارنامي اواتلولی بیانوي ، دشهیدانو کورنیو ته دتسلیت پیغام رسوي اوددوی ددغه ستر رسالت په مقابل پرته له الله نه له بل هیچامکافات اوانعامات هم نه غواړي ، نوهماغه ذات دې ددوی ټولو حافظ ،ناصر اودټولو حوایجو اودیني ارزوګانو مددګاراوپالونکی وګرځي اومذید خلوص دې پرې ولوروي ، امین

# مطبوعاتي جنګ څا ګټلی ؟

قاري حبيب

ښايي په دې خو به ټول متيقن ياستو چې د نظامي جنګ په ميدان کې د اسلامي امارت مجاهدينو امريکا او متحدينو ته يې کلک شکشت ورکړی او تيښتې ته يې مجبور کړي دي ، امريکا چې په خپله اعتراف لري چې شاوخوا له ۸۰۰ پوځي اډو څخه تښتيدلي او طالبانو ته يې پرې ايښې معنی يې داده چې شکست يې خوړلی دی.

مګر دا يوازې پوځي ميدان نه دی چې امريکا په کې د سختې رسوايۍ او شکست خوند څکلی د جګړې په بل اړخ (تبليغاتي / رواني جنګ) کې هم مجاهدين د الله تعالی د نصرت په برکت په دښمن برلاسي شوي او له دښمن څخه يې لوری ورک کړی دی.

رواني جنګ د جګړې يو مهم محاذ بلل کيږي ، ډير ځله د جګړې ګټل او بايلل له همدې ځايه پيليږي ، په جګړه کې وسلې په انساني اعضاوو چليږي ، اعضاء دزړه او دماغ تابع دي ، کله چې د دښمن په زړه ګوزار وشي ، حوصله يې ووژل شي ، د بريا فکر يې له منځه يوووړل شي ، اعصاب يې ګډوډ او وځپل شي ، نو بيا لاسونه شل او وسله يې سړه او سپنه ګرځي.

د دوهم نړيوال جنګ وتلی قومندان فيلډ مارشال مانت ګمري په دې نظر وو چې د جګړې په ګټلو او بايللو کې ترټولو اساسي عامل د جنګيدونکي کس روحيه او مورال دی ، هغه مورال چې يوازې د تبليغاتو په توسط لوړيږي او نړيږي ، د فرانسوي امپراطور ناپليون د سترو فتحو راز دا بلل کيږي چې نوموړي هم په خپل صف او هم د دښمن په جبهه کې د تبليغاتو پياوړې دستګاه درلوده ، چې په توسط يې د خپلو کسانو مورال لوړ ساته او د دښمن مورال يې له ګډوډۍ سره مخامخ کاوو.

## د طالبانو بريالی تبليغاتي ماشين

دا مريکا په ضد د دوولس کلن جهاد په اوږدو کې که څه هم د دښمن تبليغاتي ماشين خورا پراخ او هراړخيز او مجاهدين په تبليغاتي يا رسانه يي برخه کې له ډيرو مشکلاتو او خنډونو سره مخامخ وو ، مګر بيا هم لله الحمد د موثريت له اړخه د مجاهدينو مطبوعاتي مبارزه د دښمن په نسبت بريالۍ او اغيزمنه بلل شوې ده.

دا زموږ برداشت نه دی ، بلکې خپله دښمن او بې طرفه تحليلګران په دې باور دي ، چې مجاهدين په خپلو محدودو تبليغاتي وسايلو توانيدلي چې له دښمن څخه د پوځي ميدان غوندې د ساړه جنګ ميدان هم وګټي.

دا مريکا يوې وتلې رسنۍ فارين پاليسي د ۲۰۰۹ م کال په جون مياشت کې په لومړي ځل ديوه تحقيقاتي سروې په ترڅ کې وموندل چې د کرزي د حکومت او امريکايي تبليغاتي ماشين په نسبت د طالبانو مطبوعاتي جنګ خورا منظم، مؤثر او بريالی دی.

دغه مقاله چې وتلي امريکايي ليکوال رابرت هاديک Robert Hadik ليکلې وه په يوه برخه کې يې راغلي وو:

امريکايانو ته په کار دي چې له طالبانو سره د تبليغاتي او نشراتي جګړې په ډګر کې نور مؤثر او اغيزمن تکتيکونه وکاروي ځکه په دغو موجوده تکتيکونو کې طالبان په بشپړه توګه په امريکايانو غښتلي دي.

د هارديک په باور طالبان خپل خبرونه او خپل ټول پوځي فعاليتونه په ډېرې چټکتيا سره تر نړيوالو خبري رسنيو پورې رسوي او خبري رسني هم د پيښو په اړه د هغوئ نوي او تازه خبرونه په ډېرې ليوالتيا سره اخلي. د مثال په توګه د روان کال د مې مياشت کې چې کله د امريکايي پوځيانو لخوا د فراه ولايت د بالابلوک په ولسوالۍ کې له سلونه زيات ملکي وګړي ووژل شول طالبانو سمدستي په امريکايي بمباري کې د ملکي وګړو د وژل کيدو او د پيښې ټول جريان ښه په تفصيل سره خپور کړ.

خو بالمقابل امريکايي چارواکو د نوموړې پيښې او په هغه کې د وژل شويو وګړو د شمير په اړه ۱۲ ورځې وروسته يعنيد مې په شلمه نيټه يو نيمګړی رپوټ خپور کړ.

Robert Hadik ليکي: ښايي د امريکايي تحقيقاتي مقاماتو لپاره د جګړې په ډګر کې د يوې پيښې او د هغې د نتايجو تر منځ د غه ۱۲ ورځنۍ موده کم وخت وبلل شي خو په تبليغاتي او نشراتي ډګر کې بيا د امريکايانو لپاره دا يو داسې ځنډنی حرکت دی چې په دې ډګر کې د طالبانو تبليغاتي ورانديوالي ډېر په ښکاره توګه جوتيږي.

د فارين پاليسي له اعتراف وروسته هغه مهال د امريکا د بهرنيو اړيکو مرکز ( Council on Foreign Relations ) هم په خپله يو پلټنه کې په همدې حقيقت اعتراف وکړ او په يوه راپور کې يې وليکل: طالبان ځکه په خپله تبليغاتي فعاليتونو کې مخکې دي چې هغوئ هيڅکله هم ديوې پيښې د سپيناوي لپاره ۱۲ ورځې وخت انتظار نه کوي؛ بلکې د هرې حادثې له پيښيدو وروسته سمدستي د هغې د خپراوي په هکله اقدام کوي.

د مجاهدينو د تبليغاتي برترۍ په اړه د دښمن د اعتراف يو بل ښه مثال د امريکا د دفاع د پخواني مرستيال وزير ميچل دوران Michel Duran څرګندونې دي چې په دې اړه يې فارين پاليسي ته ويلي: هغوئ (طالبان) د خپلو فعاليتونو د ښه توجيه کولو او پروخت خپرولو کې ډير چټک دي، هغوئ چې کله هم زمونږ د ځواکونو خلاف کوم پوځي بريد ترسره کړي نو ۲۲ دقيقې وروسته سمدستي بيا د هغه خبر د نړيوالو ټلويزوني چينلونو له خوا نشر او د بي بي سي په شمول د ټولو ټلويزوني شبکو په لاندنۍ سره پټه کې په مکرره توګه ګرځي راګرځي

هغه وايي: طالبان نه يواځې دا چې د خبرپه رسولو او نشرولو کې چټک دي بلکې د هغه تر څنګ په خپلو فرهنګي فعاليتونو کې هم ډير منظم دي؛ مثلا هغوئ د خپلو ټولو پوځي فعاليتونو خبرونه په هماغه شيبه کې له پښتو او فارسي څخه عربي انګليسي او اردو ژبو ته ژباړي او بيايي د خپلو نشراتي وسائلو ويب پاڼو، اخبارونو او شريعت غږ راډيو له لارې خپروي.

عرب وايي ( والحق ما شهدت به الاعداء ) حق هغه دی چې حتی د ښمن ورباندې اعتراف وکړي، نو دا چې

دمجاهدینو په مطبوعاتي برتری دښمنان له خپل ټول کبر او غرور سره اعتراف کوي معنی یې دا ده چې دا یو داسې ځلند حقیقت دی چې دښمن نور نشي کولای تر تبلیغاتي غبار لاندې یې پټ کړي نو ځکه وربانديې مجبورا اقرار کوي او مني یې.

## د امریکا او مزدور رژیم ناکامې هڅې

په ۲۰۰۹ م کال کې چې په افغانستان کې د امریکا په خلاف جهاد د پراختیا وروستي حد ته ورسید ورسره دمجاهدینو مطبوعاتي هلې ځلې هم پراخې شوې، د مجاهدینو د تبلیغاتي فعالیت په وړاندې د مقابلې لپاره امریکایانو په کندهار کې د کیمک په نامه یوه مجهز مطبوعاتي مرکز جوړ کړ، ترڅو دمجاهدینو په وړاندې دتبلیغاتي جنګ موازنه برابره وساتي، خو د ۲۰۱۳ م کال د مارچ په میاشت کې دامریکا غږ اشنا راډیو ددې مرکز په اړه په یوه راپور کې وویل، چې دې مرکز د ډیرو پیسو له مصرف سره سره کومه څرګنده لاسته راوړنه نه ده درلودلې ،راپور دبیلګې په توګه ولیکل: څه موده وړاندې چې په کندهار کې دناټو هلیکوفتر راوغورځیدله کیمک مرکز هڅه وکړه، خلکو ته وښیي، چې چورلکه دهوا دخرابۍ له امله رانسکوره شوې، خو طالبان ارام نه وو ناست، بلکې هغوی ددې پیښې له وقوع څو شیبې وروسته په خپل انټرنیټ پاڼه لیکلي وو، چې په کندهار کې یې دناټو یوه څرخکه د توغندي په ګوزار راغورځولې ده.

د کندهار دوالي ویاند جاوید فیصل او امریکایي مشاور ریچارډ مک نیتن چې ددې مرکز په رغولو کې یې اساسي ونډه درلوده، داشنا راډیو خبریال ته یې ویلي، چې دوی کیمک مرکز ددې لپاره جوړ کړی وو چې دطالبانو سره په مطبوعاتي جګړه کې ترې استفاده وکړي، خو دطالبانو د پیغام خپرولو تګلارې ډیرې ساده، سریعې او مؤثرې دي، چې دهرې پیښې په اړه له وقوع وروسته سمدستي خپل نظر څرګندوي او خپل دریځ ته په پام سره یې په خپله ګټه تعبیروي.

د کندهار دتبلیغاتي مرکز غوندې امریکایانو او ملګرو یې په پلازمینه کابل او نورو ولایاتو کې هم ګڼ شمیر معلوماتي / تبلیغاتي مراکز رامنځته کړل، چې له دې جملې د ارګ دمطبوعاتو مرکز، دملي امنیت ترسرپرستۍ لاندې دروانې جنګ ریاست او دمختلفو اداراتو دعامه اړیکو مراکز دیادولو وړ دي.

څرنګه چې دمجاهدینو زیاتره بیانات او اخبار د انټرنیټ له لارې نشریدل امریکایانو په انټرنیټي نړۍ کې له مجاهدینو سره د دمقابلې لپاره دامریکایي پوځ دمرکزي قومندانۍ (سینټکام) په تشکیلاتو کې دانلاین خبرو اترو تر عنوان لاندې ګڼ شمیر افغان اجیر لیکوالان او مبلغین وګومارل ترڅو په دې برخه کې دمجاهدینو دفعالیت ځواب ووایي.

خو لله الحمد مجاهدینو په خپل پایدار مقاومت سره د سینټکام دتبلیغاتي اجیرانو له مخونو نقابونه لوځ کړل او په ټولنیزو شبکو کې یې ددوی فعالیت عاموافغانانو ته رسوا کړ، تردې چې په دوی عامه باور له منځه لاړ او دغه هڅې یې ناکامې شوې.

په ټوله کې چې امریکایانو دمجاهدینو په خلاف دتبلیغاتي جنګ کوم مراکز پرانیستلي دي، تراوسه یې دفعالیت کوم مؤثر څرک نه ښکاري، چې په دې خبره خپله دښمن هم اعتراف لري.

## د مطبوعاتي مقابلې پر تلیز جاج

ما چې همدا مقاله لیکله، په ایمیل یوه ملګري یو مطلب راولیږه، چې له همدې بحث سره یې عجیب تړاو درلود، مطلب دخپرپاڼې په نامه دیوې نوې پښتو انټرنیټي صفحې لخوا خپور شوی، خبرپاڼه ویب پاڼې

څو ورځې وړاندې په فعالیت پیل وکړ چې غواړي دافغانستان پېښنو ته خبري پوښښ ورکړي ، خبرپاڼې ویب پاڼې هڅه کړې له ټولو خواوو سره په تماس کې شي ، ترڅو ورسره خبري معلومات شریک کړي ، خو په څو ورځو کې ورته څرګنده شوې چې څوک په خبري برخه کې فعال او څوک غیرفعال دي ، راځئ دلته دخبرپاڼې سایټ لخوا دلیکل شوې تبصرې ځیني برخې ولولو چې همدا پرتلنه ښه راته واضحه کړي.

دخبرپاڼې چلوونکي لیکي ( د خبرپاڼې وېبپاڼې ایله یوه اونۍ کیږي چې په کار یې پیل کړی، خو له کومي ورځې څخه چې یې په کار پیل کړی، د هغې ورځې څخه یې چې څومره ایمیلونه او د ویب پاڼو ادرسونه پیدا کولای شوای، هغومره یې پیدا کړل او دغو ټولو ته یې خپل د پرانیستنې خبرتیا ولېږله، چې ځینو وېبپاڼو لکه دعوت میډیا او نن ټکی آسیا په خپلو درنو وېبپاڼو کې نشر هم کړل.

ددې خبرتیا د نشر سره سم ځینو پښتو فرهنګي ملګرو د خبرپاڼې سره اړیکه ونیوله، او ځینو په فیس بوک کې پیغامونه راته پرېښودل، خو خبرپاڼه لکه څرنګه چې د نامه څخه ښکاري توقع درلودله، چې هغه دولتي ارګانونه، وزارتونه او نور تنظیمونه او د افغانستان په قضیه کې دخیل اړخونه به خپلې خبرپاڼې او خبرونه ورته لیږي، خو له ډېره بده مرغه دا یو هم نه وشول، یوازې طالبان دي چې دلومړۍ ورځې څخه یې خبرپاڼې ته په مسلسله توګه خپل خبرپاڼې او خبرونه په مکرره توګه رالیږلي، چې ځیني یې د خبرپاڼې له لوري نشر ته سپارل شوي هم دي.

ددې څخه دا راته جوتیږي چې دولت او د هغوی وسلوال مخالفین طالبان میډیا ته څومره اهمیت ورکوي، او څرنګه هڅه کوي چې د هیواد تر ټولو رسنیو په وخت خپل ځان او خبر ورسوي، او په دې توګه خپل ځان ثابت کړي او د افغانانو په اذهانو کې خپل وجود ثابت کړي، هغوی ښه پوهیږي، چې یوه رسنۍ هم ددوی خبرپاڼې او خبرونه هغه ډول نه نشروي لکه څرنګه چې یې دوی غواړي خو بیا هم نه ستړي کیږي، نه مایوسه کیږي، او نه پرشا کیږي، بیا بیا خبرپاڼې، خبرونه او خپل اړوند رسنیز مطالب او ویډیوګانې تر رسنیو پر وخت رسوي، او د هغوی څخه د نشر هیله کوي.

خو بل اړخ ته په ډېر افسوس سره باید ووایو چې د افغانستان هر وزارت ځانته فرهنګي څانګه، ویاند او اداره لري، خو په دغو ادارو کې کارکونکې که څه هم لوی لوی معاشونه اخلي، دفترونه لري، کورونه لري، او موټر یې په خدمت کې دي، کمپیوټر، د انټرنیټ اسانتیاوې او نور زیات اسایشونو څخه برخمن دي، خو ددې ټولو سره سره دوی د طالبانو په پرتله څوک چې نه په هیواد کې دننه ځای لري، او نه هیواد څخه بهر یې ژوند په ارامه دی، ډېر کم کار کوي. بلکې ډېر وخت چې ددغو کسانو اړوند مسائلو کې د ژورنالستانو په کار شي او اړیکه نیولو هڅه ورسره وکړي، دکار په وخت یې موبایل بند وي، یا ورته ویل کیږي چې صاحب په میټنګ کې دی، یا د وزیر صاحب سره چیرته په سفر تللی، او یا نور څه، خو ویاند صاحب او نور فرهنګي ملګري به یې په فیس بوک کې خپل د اولادونو، خپل د مرفه موټرونو، خپل د کوچنو څخه د ډک مجلسونو او الماریو عکسونه شېر کوي، او د افغانانو په کړېدلي حالت به نور هم مالګه دوړوي )

لوړې خبرې دافغانستان د یوې بې طرفه خبري ادارې قضاوت دی چې به واضحه توګه دمجاهدینو او دښمن دمطبوعاتي فعالیت په اړه نتیجه ترې اخیستلای شو.

د مجاهدينو ميډيا که څه هم بشري ځواک يې کم ، امکانات يې محدود ، کاري چاپيريال يې ستونزمن او له يو عالم ستونزو سره لاس او ګريوان دي ، مګر بيا هم د اعلامي مجاهدينو داخلاص ، قربانۍ او نه ستړي کيدونکو هلو ځلو له امله توانيدلي چې د پوځي جنګ غوندې په دې برخه کې هم دښمن ته شکست ورکړي.

د ۲۰۱۳ ميلادي کال دمی په ۲۳ نيټه په کابل کې د ( هماهنګي سخنګويان ارشد دولتي ) ترعنوان لاندې د مهمو وزارتونو دوياندويانو لخوا يو کانفرانس جوړ شو ، چې ددفاع ، داخله وزارت ، ملي امنيت او نورو اداراتو وياندويانو په کې ګډون درلود په دې مراسمو کې دد فاع وزارت وياند ظاهرعظيمي په خپله اعتراف وکړ چې دطالبانو وياندويان تر دوی ډير خپلې وظيفې ته ژمن او په کار کې موفق دي.

په دې غونډه کې دافغانستان دازادو رسنيو د بنسټ مشر صديق الله توحيدي هم وويل چې دطالبانو وياندويان هميشه له خبريالانو سره دمعلوماتو په شريکولو کې همکار پاته شوي ، له هرې پيښې وروسته په ډير سرعت له رسنيو سره خپل دريځ او معلومات شريکوي ، خو دولتي وياندويان په خپل کار کې هميشه تنبل ثابت شوي دي.

دا يوازې خبري برخه نه ده چې مجاهدين په کې ددښمن په پرتله په برلاس دريځ کې دي ، بلکې په نورو تبليغاتي او نشراتي برخو کې هم مجاهدين له دښمن څخه مخکې دی ، مجاهدينو د صوتي ، تصويري او چاپي رسنيو له لارې هميشه خپل پيغامونه ، برياوې ، ددشمن تلفات ، مظالم او رسوايۍ په ډير مهارت او راښکوونکي کيفيت سره تر افغانانو رسولي دي ، هغه څه چې دښمن ددا ډول هر اړخيز فعاليت لپاره تر اوسه کوم چوکاټ نه دی جوړ کړی.

د کرزي د رژيم د کرنې وزارت وياند په همدې موضوع يو مطلب ليکلی چې عنوان يې دی ( کمزوري ارتباطات ، بېړا نظام او تر وخت تېر پروتوکولونه )



دا مطلب چې د ماشهدت به الاعداء ښه مثال ورته ويلی شو په يوه برخه کې يې دوه طرفه تبليغاتي پرتلې ته داسې اشاره کوي (د نظام د ارتباطاتو د ستراتيژۍ د کمزورتيا يوه عمده بېه د مخالفينو د ناوړه کارونو نه تبليغېدل دي. په دې برخه کې مخالفين د دولت په پرتله څو چنده زيات غښتلي دي. مخالفينو د شمال د جنسي تېريو پيښې يوه يوه په تبليغاتي ويډيوګانو کې کارولي، خو نظام د مخالفينو له جنايتونو څخه لږه تبليغاتي ګټه هم نه ده اخيستې. د هغوی هر نظامي ګروپ پر عصري ويډيويي او تصويري کامرو سمبال دی، او په دې نظام کې لا شته داسې وزارتونه چې تر اوسه د عکاسۍ عصري کامرې نه لري. لنډه دا چې د تبليغاتو په برخه کې نظام تټر، او مخالفين د بلبلانو غوندې په سلو ژبو ګويان دي)

له لوړو حقائقو او ددښمن له اعترافو په څرګنده معلوميږي ، چې دمجاهدينو مطبوعاتي فعاليتونه ددښمن په نسبت بريالي ، اغيزمن او منسجم دي ، چې دښمن يې تر اوسه دمقابلې مخ نه دی موندلی.

# دسوړجنګ ګرم ډګراودمسلمانانونه دوخت غوښتنه

**شهيد زوى**

مطبوعاتو يا رسنيو ته څکه د دولت څلورمه ستنيا رکن وايې چې دا د دولت ۳ ګونو نورو قوو يانې قضائيه قوې مقننه قوې او اجرائيه قوې تر منځ ربط ساتي ؛ ولس ددې ادارو د فعاليت نه خبروي او د ولس ستونزې او مشکلات د دولت تر غوږو رسوي.

دا چې رسنۍ د دولت څلورم رکن دى هيڅوک ترې انکار نه کوي بلکې دا هم هر څوك منى چې دې جملې اوس نړيوال حيثيت غوره کړيدى خو دا چې دې دور ته د رسنيو يا ميډيا دور ويل کېږي او همدې رسنيو نړۍ ته ديو کلي حيثيت ورېښلى دى او نړۍ په هر ګوډ کې چې کومه پېښه رامنځته کېږي په بل ګوډ کې ترې نه يواځې دا چې هر څوك خبرېږي بلکې د انټرنيټ او تلويزونونو په پردو يې څو دقيقې پس په خپلوسترګووينې هم ،او دا چې د همدې رسنيو له لارې د نړۍ د هر قنج وکنار د حالاتو نه په ډېرې اسانۍ هرڅوك ځان خبرولاى شي نو اوس خبره د دولتونو د څلورم رکن نه وړاندې نړيوالتوب ته تللى ده ؛اهميت يې نړيوال دى او اغېزې يې هم نړيوالى دى نو څکه رسنۍ نن د اهدافو او مقاصدو د تر لاسه کولو لپاره تر ټولو ستره ، مهمه او کاميابه وسيله ګڼل کېږي.

نو يقيني خبره ده چې که چېرې د نړۍ خلکو په اتفاق د انساني اقدارو د احياء او بقا او د ټولو انسانانو تر منځ د مشترکو ، غوره او مثبتو اهدافو د ترلاسه کولو لپاره رسنۍ په کار اچولې واى او د شومو اهدافو د حصول کار ترې نه واى اخستل شوى نو انساني ټولنه به په اخلاقي اومعنوي لحاظ دومره تنزل نه واى کړى څومره يې چې وکړ ؛ جنګونه او بدامني به نه واى ، بداخلاقي به نه خپريداى ؛ دمذاهبو او ملتونوترمنځ به منافرت نه واى ؛ د زېرمو د غصب او د خاورو د اشغال په موخه به په کمزورو ولسونو جنګونه نه مسلط کېداى ؛ په يو جنګ کې به په مليونونو کمزوري بى ګناه انسانان نه وژل کېداى ؛ او نه به هم په جنګونو يانې د انسانانو په وژلو او د ابادو کورونو او ښارو په ورانولو په ملياردونو ډالر مصرفېداى ، د هر چا مال ځان او عزت به په امن کې واى ، انساني اخلاق او کردار به ژوندي واى ، بشريت ته به دقدر او احترام په نظرکتل کېداى ، انساني همدردي به عامه واى ، د ابادو کلو او ښارونو په ورانولو او د انسانانو په وژلو چې کومې پيسې لګېږي دابه د نړۍ په ابادولو ، د علم په خپرولو ، د ورو انسانانو په مړولو ، د علمى او تحقيقاتى او صحى مرکزونو په جوړولو ، د بې وزلو مريضانو په درملنې ، د يتيمانو او غريبو کوچنيانو په پالنې او د سواد نه د محرومو ولسونو په علمي روزنې او د انسانانو تر منځ د مينې او محبت خپرولو په لار کې لګېداى.

خو متاسفانه ! دغه وسيله چې انساني ټولنې ته د ډېر لوى خير د رسولو کار ترې اخستل کېداى شو اوس ترې په نړيواله سطحه ډېر لوى شرخپرېږي او د چاچې پرې قبضه ده

یواځې د همغوئ د شوموا هدافو د لاسته راوړلو لپاره په ډېر ناوړه ډول کارول کېږي.

غم ټول له دې ځای نه جوړ دی چې لویدیځ چې په سر کې یې امریکا ده پر ټولې نړۍ خپله باداري ؛ د ټولې نړۍ په وسایلو خپله قبضه ؛او د نورې ټولې نړۍ خلك خپل ذهني غلامان کول غواړي چې بدبختانه دې ټولو هیلو ته د رسېدو یواځینۍ لار دوئ پر نړۍ د خپل غربي کلتور مسلط کول ګڼي او د دې لارې یواځنی خنډ حقیقي اسلام ؛ ریښتوني مسلمانان؛ په نړۍ کې د اسلام سریع اشاعت ؛داسلامي فکروده ؛ اسلامي تهذیب و تمدن ؛ اسلامي ټولنیز نظام او اسلامي حاکمیت بولي نو ځکه یې چې د دې ټولو پر ضد پراخه عسکري جنګ پیل کړی نوترڅنګ یې د رسنیو په وساطت ډېر وسیع او خطرناك تبلیغاتي جنګ هم روان ساتلی دی.

د اسلام او مسلمانانو پر ضد داعلان شوی جنګ په لړ کې چې امریکا او متحدین یې په هر اسلامي هېواد یرغل کوي لومړی یې پر ضد دومره منفي تبلیغات وکړي چې کله پرې فوځي یرغل کېږي نو دا یرغل هر څوك پر ځای عمل بولي او په بهر نړۍ کې یو هېواد یا ولس دا ناروا مسلط شوی جنګ نه ګڼي.

د مسلمانانو پر ضد پدې روان جنګ کې د رسنیو ونډه ډېره بنسټیزه ده ؛ موږ وینوچې د اسلامي هېوادونو د اشغالولواو خپلو شومو اهدافو ته د رسېدو لپاره امریکا او نورلویدیځ د کمزورو او مظلومو انسانانو پر ضد ډېر بې دریغه طاقت کاروي ؛ د خطرناکو وسلو پرمټ عامه وژنې کوي ؛ عام المنفعه تاسیسات له منځه وړي ؛اباد کورونه په کنډوالو بدلوي ؛ ګڼ شمېر بې ګناه انسانان د زندانونو د تورو تمبو شاته غورځوي خو دنړیوالو رسنیو کمال دی چې سره ددې ستر ظلم او وحشت دا ظالمان سپین بازان وي او دا مظلوم ، مقهور او مجبوره وکړي ظالمان جابران او ترورستان ګڼلی شي.

دپر مخ تللو او عصری ټیکنالوژۍ پر مټ سیمې او هېوادونه قبضه کولی شي خو د رسنیو د تبلیغاتو له لارې د خلکو د زړونو ، تمدن ، تهذیب ، قومي اقدارو او کلتور د مسخ کولو هڅې کېږي ، او د همدې رسنیو د زهرجنو تبلیغاتو له لارې د ولسونو د نوو نسلونو د ذهنونو او د دماغو د مفلوج کولو او په فکري لحاظ یې د غلام جوړولو کوششونه کېږي ، ځکه چې رسنۍ د مافی الضمیرد اظهارنه بلکې د رسنیو د مافی الضمیر سره د خلکو د ذهنونو او فکرونو د برابرولو یواځنۍ کامیابه او مؤثره وسیله ده.

همدا میډیا یا تبلیغاتي وسیله ده چې کوم شخص ، اداره ، ګوند بلکې د یو هېواد پوره ولس د قبولیت معراج ته رسوي اود مقبولو اشخاصو ، ادارو ګوندونو او ولسونو څېرې نړۍ ته منفورې وړاندې کوي ؛ په شپو شپو کې د ګیدړانو نه اتلان او د اتلانو نه ګیدړان جوړول د میډیا د پټو ستر ګو کار دي.

ټولنې رسنیو د خپل داسی اثرلاندې راوستې دي چې په نا شعوري ډول خلکو خپل ذهنونه د رسنیو تابع ګرځولي دي ، په بل عبارت خلك د رسنیو له فکر نه فکر کول، له سترګو نه یې لیدل او د رسنیو په ترازو تلل پیل کړیدي چې دا ډېر د فکر وړ خبره ده.

د ۱۱ ستمبر نه پس لویدیځ د رسنیو مؤثر کولو او تقویه کولو ته ډېره زیاته توجه کړیده او پدې لار کې زښت زیات مصارف کوي ؛ د وسله وال جنګ تر څنګ تبلیغاتي جنګ هم مستقله بنه غوره کړیده او دایقیني خبره ده چې اوس په مقابلې کې د وسله وال جنګ بریا لیتوب او شکست دهمدې مطبوعاتي جنګ دبریالیتوب او شکست سره تړلی شویدی ، ځکه چې جنګونه په زیاتو

پیسو ،ډېرو وسلو او وسایلو نه ګټل کېږي بلکه جنګونه د ولسونو او جنګیالو په لوړ مورال ،نه سترې کېدونکې حوصلې او دیني احساس ګټل کېږي ، او ګټل یې هغه مهال لا پسې یقیني کېږي کله چې مقابل لوري مورال وبایلي.

څکه خوپه غربي رسنیو کې شپه او ورځ ددې لپاره تبلیغات روان دي چې د مسلمانانو حوصلې ماتې شي ، مورال یې وغورځېږي په هر ډګر کې ماتې ومني او بر عکس غربي ولسونه او جنګیالي مورال ونه بایلي ، حوصلې یې ماتې نه شي او ژرماتې خوړلو ته تیار نه شي ؛ دابیا بیله خبره ده چې پدې هڅو کې دوئ ته هغه بریالیتوب نه وریه برخه کېږي دکوم چې تمه کوي او سره ددې زهر جنو تبلیغاتو ، د کامیابۍ د سترو دعوو او مسلمانانو ته د ماتې ورکولو د لویولاپو هم د مسلمانو شازلمو مورال د هندوکش له غره نه لوړ او د غرب د ولسونو او جنګیالو مورال د تیټوالي په هغه حدودو کې دی چې شاید لاندی به ترې بله مرتبه نه وی.

دا سمه ده چې اسلام د داسې فاحش ، زهرجن ، باطل پرست او ظالم پرست ، نفرت خپرونکې او اشخاصو ،ډلو، او ګوندونو ته سپکاوی کونکي مطبوعات رد وي او هیڅکله خپلو متبعینو ته دا اجازه نه ورکوي چې د دروغجنو او زهرجنو تبلیغاتو له لارې خپلو اهدافو ته د رسېدلو هڅې وکړي.

خو دا هم یو حقیقت دی چې پدې دین کې د ابلاغ ډېر لوی ارزښت دی ، اسلام د حق او صداقت خپراوی او د باطل مخنیوي او خلك ورنه خبرول د هر مسلمان مسئولیت ګڼي. دا له هیچا هم پټه نده چې د اسلام بنسټېز هدف د کلمة الله اعلاء ده چې دا دوه جزونه لري یو احقاق حق او بل ابطال باطل ؛ اسلام پدې دواړو ډګرونو کې د مؤثرو او کامیابو وسایلو د کارولو حکم کوي چې طبعا مؤثره او کامیابه وسیله رسنئ دي البته رسنئ به د همدې عالي اهدافو او مقاصدو لپاره کارول کېږي چې اسلامي اصول، مبادي او اخلاق به پکې هیڅکله له پامه نه غورځول کېږي.

په رسنیو د اسلام او مسلمانانو د دښمنانو او د هغوئ د فکري غلامانو له لوري په اوسنی قبضې باندې یواځې غم او افسوس ښکاره کول او ډګر اغیارو ته پرېښودل د مسئلی حل ندی بلکې پدې حساس وخت کې ددې خبرې ډېره زیاته اړتیا لیدل کېږي چې ذی استعداد ټول مسلمانان درد او قبول خود ساخته معیارونو ته شا کړي ؛ مادي ګټې ، عزت او شهرت له نظرونو وغورځوي او (( قطره قطره بهم شود دریا )) په اصولو د عمل له لارې ښه په اخلاص د مقابلې ډګر ته راؤوځي اوژردلویدېځ ددې سیلاب مخه ونیسي.

نن پر نړیوالو رسنیو د یهودو او مسیحیانو قبضه ده ، دوئ چې کله هم د اسلامي نړۍ پر کومې برخې یرغل کول غواړي د رسنیو پر مټ دیرغل نه دمخه د یرغل لپاره پوره زمینه سازي کوي چې پکې تقریبا کامیابېږي هم ، دا چې بیا د مسلمانو شازلمو په مقابل کې په ډګر کې نشي ټینګېدای او د شرمونکې ماتی سره مخامخ کېږي هغه بیله خبره ده خو رسنئ چې د کوم هدف د لاسته راوړلو لپاره کار وي نو پکې بریالي دي.

دا هم بایدومنوچې د اسلام اومسلمانانو پرضد یې چې کوم زهرجن تبلیغات پیل کړیدي له امله یې د اسلام او مسلمانانو دلوړو اخلاقو ، مثبت سیاست ، ټولنېزو مثبتو انقلابي بدلونونو، بشري همدردیو، تهذیب ، ثقافت ، تمدن او صالحه افکارونه نه یواځې دا چې نړۍ بې خبره او محرومه پاتې ده بلکې د نړیوالو افکار د اسلام اومسلمانانوپه اړه بیخي د حقیقت معکوس کرځېدلي دي نو څکه د مسلمانانو د خپلو رسنیو سره دا هیلې تړل کېدای شي چې د

اسلامي عالي اخلاقو ، سیاسي ، تهذیبي او ثقافتي اقدارو او خوبیا نو سم اشاعت او نګراني به وکړي او د اسلام پر ضد د تبلیغاتو غاښ ماتونکی جواب به ورکړي.

داهم باید له یاده ونه باسوچې زموږ د اسلامي نړۍ په ټولنیز ژوند اوس د مطبوعاتو اغېزې ډېرې جوړې دي ، د فحاشۍ په خپرولو او د اسلام د عملي ، فکري ، تهذیبي او لوړ اخلاقي تشخص نه د مسلمانو ځوانانو د لرې کولو لپاره غربي میډیا شپه او ورځ پر ځان یوه کړېده ؛ چې ددې دجالي پروګرامونو مخه هم یواځې د مسلمانانو خپلې رسنۍ نیولی شي.

داخبره هم ډېره دتوجو وړ ده چې په اسلامي نړۍ کې تش په نامه ګڼ داسې پوهان شته چې دمادیاتوپه بدل کې داغیارو د لاس آله ګرځېدلي دي اود خپلو لیکنو ، مرکو او د رسنیو د نورو پروګرامونو له لارې د اسلام د اصل روح د مسخ کولو او د عامو ساده مسلمانانو د بې لارې کولو کوششونه کوي چې د دوئ مقابله یواځې د شریعت د اصل روح او مزاج نه خبر هغه زیرک دیني عالمان کولی شي چې د دښمن شومو پلانونو ته متوجې وي او په رسنیو کې په ځای پیداکولواو مقام جوړولو توانیدلي وي.

د نړۍ په مختلفو برخو کې د کفارو یاد هغوئ د لاسپوڅودیکتاتورانو لــه لوري پر مسلمانانوډېر ستر ظلمونه او وحشتونه روان دي خو نړیوالې رسنۍ ددې مظلومو مسلمانانو په حالت سترګې پټوي او د ظلم او وحشت کوم خبر او حالت چې نشي پټېدای هغه د یو عام خبر په صورت کې وړاندې او پر حقیقي صورت یې پردې را اچوي نو په داسې حالت کې د مسلمانانو په لاس کې د خپلو داسې رسنیو اړتیا ده چې لېرتر لږه ددې مظلومو مسلمانانو دمظلومیت غږپورته ؛ داصل حالت نه یې نړۍ خبره او د ظالمانو حقیقي وحشي څېره نړۍ ته ښکاره کړي. څه پدې پوهېږم چې اوس مسلمانان پدې ډګر کې ډېر وروسته پاتې دي ؛ لایې ډېر اوږد سفر پر مخ دی او ډېر زیات کوښښونه ورپه غاړه دي خو پدې هم پوهېږم چې هوښیارو ، دردمنو او زیرکو مسلمانانو د مطبوعاتو د اهمیت په درك کولو اوس دې ډګر ته رادانګلي دي چې دا ډېر لوی غنیمت دی ؛ ډېره کټه یې کړیده چې دښمن یې هم ورخطا کړیدي ، او د امریکا په نوم هغه سترفرعون چې دنړۍ په ټولو رسنیو یې قبضه ده داسلامي امارت د محدودو خو د حق او صداقت د علمبردارو رسنیو په مقابل کې د خپل شکست اعتراف کولو ته اړ شوی.

دمسلمانانو خپل دا اخبارونه، دیني رسالې ، جرائد ، مجلې او ویب پاڼې ماته د باران هغه ړومبی قطره ښکاري چې له ځان سره یې د رحمت داوږد باران زېری راوړي وي ، درحمت دا باران به بیا الله ددښمن لپاره په داسې زحمت بدل کړي چې ټولې هیلې او شوم پلانونه به یې د خاوروسره خاورې کړي.

هو ! موږ چې د وروستي حق اسماني دین پیروان یواو ددې دین لارښونو ته پوره ژمنتیا د ټولو بریالیتوبونو سرچینه ګڼو نو قدم په قدم په ټولو چاروکې دروا اوناروا تر منځ تمیز ډېر ضروري ګڼو او خپلو اهدافو ته د رسېدلو لپاره د ټولو هغو وسایلو په کار اچول روا نه ګڼو کوم چې زموږ پر ضد دښمن په کاراچوي خو پدې پوهېږو چې ددښمن پرضد ددښمن خپله وسله کارول ستر کمال دی؛ امید دی چې مسلمانان به د مقابلې پدې ډګر کې دا حقیقت له پامه نه غورځوي.

# دافغانستان اسلامي امارت

# دتعليم اوتربيې دکميسيون هڅې او برياوې



حامداً ومصلياً: څرنګه چې د افغانستان اسلامي امارت بنسټ د مدرسو د طالبانو لخوا ايښودل شوی ، او همدا امارت وه چې د ظهور په اوائلو کې د طالبانو د اسلامي تحريک په نوم ياديده، د طالب دلفظ څخه د علم اوپوهې رڼا څرګندېږي، دا حقيقت هر چا ته معلوم دی چې د دغه سپيڅلي انقلابي پاڅون مرکزي جوړښت د پيله تر اوسه پورې علم اوپوهې ته له منسوبو اشخاصو طالب، مُلا او عالم نه جوړ شوی دی او طبعي ده چې دحق ددې قافلې ټول لاروي او شريک وال به علم او پوهې ته زيات مخلص او وفادار وي او د تعليم د ترقۍ او ودې په کوشش کې به وي.

په همدې اساس دطالبانو اسلامي تحريک دخپل ظهور په لومړيو بيا اسلامي امارت د خپلې واکمنۍ پرمهال علم او تعليم ته زاته وده ور کړه،د( الناس على دين ملوكهم ) په مصداق هيواد کې دعلم دزده کړې لور ته دهېوادوالو ميلان په زياتيدو دځوان نسل له منځه لوی شمير دعلم لارې لارويان شول

دمدرسو او دارالحفاظونو يو بل وروسته جوړولو او لوی شمير ښو ونځيو د تاسيس بهير داسې تعبير ولی شو چې داسلامي امارت دعلم پالونکي پاليسۍ په نتيجه کې په سيمه کې دعلم واوتعليم په بڼ کې انقلاب راغی ، کله چې صليبي داړه مارانو دافغانستان په پاک حريم باندې په تيري کولوسره دطالبانو او عالمانو دپاکو وينو په برکت جوړ اسلامي امارت نه واک غصب کړ ، نو د افغانانو تر څنګ د ټولې سيمې په مسلمانانو کې د مقدّس جهاد پاڅون تر څنګ دعلم او تعليم لور پاملرنه نوره هم ډېره شوه، د مدرسو جوړولو رجحان زيات شو هم په مدرسو کې دطالبانو د داخلې دفيصدي ګراف په دومره لوړ ه شو چې وړاندې يې ساری نه لاره.

دافغانستان اسلامي امارت چې لور ته دير غلګرو صليبيانو او ددوی د اجيرانو په وړاندې په مسلح جهاد کې مصروف و،ورسره دعلم داهميت ته په پام او دهيواد خلکو لپاره د سوچه تعليمي ماحول برابرولو او د نوي نسل دسالمې تربيې په غرض يې د تعليم او تربيې په اړه ځانګړی کميسيون جوړ کړ.

دتعليم اوتربيې کميسيون ته د کار دپيل وروسته دپام وړ برياوې او لاسته راوړنې په برخه شوې. کومې چې د کميسيون خپرونو ځانګه په لنډ ډول داسي وړاندې کوي.

څو د صليبيانو دا مطبوعاتي درواغ جواب شي چې وايي: طالبان د تعليم مخه نيسي او د مکتبو مخالف دي او دبلې خوا ټولو هيوادوالو ته دتسلۍ او ډاډ پيغام شي.

(۱) د اسلامي امارت د تعليم او تربيې د کميسيون د اړونده چارو د ښه تنظيم او په اصولي توګه د إجراءاتود ترسره کولو لپاره په (۱۰۱) يوسل يو مادو کې لائحه جوړه شوې ده چې د اسلامي امارت د مقام د منظورۍ څخه پس د هيواد ټولو ولاياتو او ولسواليو ته رسول شوې ده، د تعليم او تربيې اړونده چارې د کميسيون د مؤظفينو او کارمندانو لخوا د دې لائحې په رڼا کې پر مخ بيول کېږي، او د لائحې تطبيق ته جدي توجه کېږي او د عملي کولو څارنه يې د کميسيون د رياست د مقام او مسؤلينو لخوا وخت په وخت ترسره کېږي.

(۲) د کميسيون د لائحې د دوهم فصل د (۲۱) مادې په اساس د تعليم او تربيې کميسيون د ټول هيواد په کچه پراخ اداري تشکيل لري په دغه تشکيل کې د مرکزي عالي کميسيون رئيس او څو تنه اعضاء او د هر ولايت لپاره يو د تعليم او تربيې رئيس او د ولايتي رئيس لپاره يو معاون که په کوم ولايت کې د کار حجم زيات وي بيا د ولايتي رئيس لپاره دوه معاونين او د ټولو ولاياتو د هرې ولسوالۍ لپاره يو، يو مديريت منظور شوى دى، د اداري تشکيل په دغه بستونو کې د اوس لپاره د کميسيون د رئيس او مرکزي اعضاؤ څخه علاوه د ولاياتو د رئيسانو او معاونينو شميره؟ (٦٦) تنه دى او په ولسواليو کې (۳۰۸) مديران تعين شوي دي. د دې ترڅنګ د کميسيون په چوکاټ کې د مدارسو د نصاب د ترتيب او د نظر ثاني کولو او د داسې نورو اړونده تدريسي چارو د ترسره کولو او انسجام لپاره د هيواد د جيّدو او مشهورو علماء کرامو او مشائخو عظامو څخه (۱٦) کسيزه علمي بورډ ((شورىٰ)) هم جوړه ده، او دغه راز د کميسيون اړونده دعالي تحصيلاتو په برخه کې څو تنه مؤظفين کار کوي چې د دې ټولو سره د کميسيون اړوند مقرر شوو مؤظفينو تعداد (۴۳۱) تنو ته رسېږي.

(۳) د کميسيون د علمي بورډ لخوا د مسلکي ماهرانو په مشوره وړو کلي والو مدرسو لپاره درې کلن تعليمي نصاب او لويو ديني مدارسو لپاره ښه مضبوط او جامع واحد تعليمي نصاب جوړ شوى.

چې دغه نصاب د کميسيون لخوا د اسلامي امارت د مقام څخه د منظورۍ اخستلو وروسته د هيواد په دننه کې د ولاياتو د تعليم او تربيې داړونده رياستونو په توسط او همدا راز د هيواد څخه بهر د هجرت په ديار کې افغاني ديني مدرسو ته ورسول شو.

چې لله الحمد دغه نصاب د الله تعالىٰ په توفيق او د مدرسو د مهتمينو او مسئولينو او استاذانو د همکارۍ او موافقې په اساس تر ډيره حده عملي شوى دى، او د مزيد او مکمل عملي کولو لپاره يې د کميسيون لخوا په دوام داره توګه هلې ځلې روانې دي، او هم يې د کميسيون لخوا څارنې د مؤظف هيئت په توسط وخت په وخت مراقبت کېږي.

(۴) د ديني مدارسو د اداري او تدريسي چارو د اصلاح او ښه تنظيم په منظور د کميسيون لخوا د ديني مدارسو د مسئولينو او استاذانو د مشورو په پام کې نيولو سره په (۲۰) مادو کې هدايات، اصول او ضوابط جوړ او ترتيب شول.

، په دغو هداياتو کې د طالبانو د تعليمي سويې او علمي کيفيت لوړوالي، د دوى د استعدادونو د بحال کولو، د دوى د اخلاقي اقدارو د ساتنې، او د دوى په روزانه اسباقو او په امتحاناتو کې د حاضرۍ د پابندۍ کولو په شمول نور ضروري او مفيد هدايات ورته په ګوته شوي دي چې د دغه (۲۰) مادې د علمي بورډ لخوا تاييد او تصويب کولو پس د عملي کولو لپاره د متحد المال مکتوب په ذريعه په هيواد کې دننه او د هيواد څخه بهر د هجرت په ديار کې ټولو افغاني ديني مدرسو ته رسول شوي چې د تطبيق څارنه يې د اړونده مؤظفينو لخوا وخت په وخت ترسره کېږي.

(۵) د ديني مدارسو لپاره د منظور شوو هداياتو او ضوابطو په اساس او د تعليمي نصاب په رڼا کې د تعليم او تربيې کميسيون د نظارت د لاندې په ټولو ديني مدارسو کې په هر تعليمي کال کې درې امتحانونه اخستل کېږي ((درې مياشتنى، شپږ مياشتنى، کلنى)) چې د وړې او لوې دورې کلنى امتحان په مشترک ډول اخيستل کېږي او د دغه کلني امتحان لپاره مشترکې پارچې هم د کميسيون د علمي شورىٰ (بورډ) لخوا جوړېږي.

تير تعليمي کال د ټولو ديني مدرسو څخه درې واړه امتحانونه د کميسيون د مؤظف هيئت د نظارت لاندې واخستل شول.

د وړې او لوې دورو د طالبانو څخه کلنى امتحان په يو مهال په مخصوصو امتحان هالونو کې پخپله د کميسيون لخوا واخستل شوه، چې د بلوچستان اړوند مدرسو څخه يکې (۴۲۳) تنو طالبانو او خيبر پختونخوا کې اړوند مدرسو څخه يکې (۱۳۲) تنو طالبانو شرکت وکړ

په دغه امتحان کې دبلوچستان مربوط (۳۵۸) تنه طالبان او دخیبر پښتونخوا مربوط (۱۲۰) تنه طالبان کامیاب شول چې دغو دغه ټولو (۴۷۸) تنو کامیابو طالبانو ته د کمیسیون لخوا ښه معیاري او معتبر سندونه ((شهادتنامې)) ور کړل شول.

دتیر کال په شان روان تعلیمي کال درې میاشتنی امتحان په ټولو مدرسو کې په تحریري ډول د محرم الحرام په (۲٦) شروع او په شپږ ورځو کې پای ته ورسید او شپږ میاشتنی امتحان د ربیع الثاني په (٦) او (۷) دوه ورځو کې په تقریري ډول واخستل شو چې ددې دواړو امتحانونو دبهیر څارنه دتعلیم او تربیې دمؤظف کمیسیون لخوا په دوام داره توګه تر سره کېده او ټاکل شوې ده چې کلنی امتحان به ان شاء الله تعالیٰ د رجب المرجب په (۱۸) شروع او په شپږ ورځو کې به مکمل واخیستل شي.

د تیر کال په شان به سږ کال هم د وړو او لوړو دورو د کلني امتحان سوالونو د مشتر کو پرچو په شکل جوړې کړی شي اودغه امتحان به هم مستقیماً د کمیسیون لخوا په مخصوصو امتحان هالونو کې واخستل شي.

ددغه کلني امتحان د انعقاداو تاریخ په هکله د کمیسیون لخوا ټولو اړونده مدرسو ته د ربیع الاول په (۱۹) دمتحدالمال مکتوب په ذریعه خبر ور کول شوی دی او د مکتوب سره ضمیمه په امتحان کې د ګډون کونکو طالبانو لپاره مخصوصې فورمې هم دغو ټولو مدرسو ته ور رسول شوې دي. او دغو مدرسو ته په تاکید سره لیکل شوي دي چې د خپلو هغو طالبانو چې په کلني امتحان کې ګډون کولو اهلیت ولري مکمل کوائف ددې فورمو په ډکولو سره د کمیسیون مرکز ته دجمادی الثاني تر (۱۵) پورې راولېږي تر څو دهمغه تعداد سره سم کمیسیون د امتحان هالونو او په امتحان کې د کیناستلو ((رقم الجلوس)) انتظام او اهتمام وکړي او بیر ته یې مدرسو ته پخپل وخت ور ولېږي.

(٦)د دیني مدرسو او طالبانو لپاره په (۲۰) مادو کې د تیار کړل شوو هدایاتو په رڼا کې دادوه کاله (یعني تیر تعلیمي کال او روان تعلیمي کال) د دیني مدارسو د طالبانو ترمینځ تقریري مقابلې د کمیسیون لخوا ترتیب او په بریالیتوب سره تر سره شوې، چې تیر کال تقریري مقابله د سیرة النبي ((صلی الله علیه وسلم)) په موضوع باندې دشپږمې درجې د طالبانو ترمنځ وشوه دغه مقابله د بلوچستان اړوند دیني مدرسو د طالبانو ترمنځ د کوئټې په ښار کې تر سره او یکې د( ) مدر سو( ) تنو طالبانو برخه اخستې وه او دخیبر پښتونخوا اړوند مدرسو د طالبانو ترمنځ د مردان په ښار کې تر سره شوه چې د(۵۸) مدرسو یکې (۵۸) تنو طالبانو برخه واخسته د تیر کال مقابلې په مدرسو او طالبانو کې ډیر ې ښې پایلې ولرلې او طالبانو یکې په ډیر شوق او پوره تیاري کولو سره شرکت وکړ.

د تعلیم او تربیې کمیسیون دتیر کال پشان سږ کال بیا دتقریري مقابلې اهتمام وکړ داځل دغه تقریري مقابله د موقوف علیه درجې د طالبانو ترمنځ په ((په شریعت کې کې د فقهې اهمیت او ضرورت)) په موضوع د بلوچستان او خیبر پښتونخوا اړوند مدرسو د طالبانو ترمینځ هم مهال تر سره شوه چې دخیبر پښتونخوا اړوند (۲۸) مدرسو څخه یکې (۲۸) تنو طالبانو ګډون وکړ او دبلوچستان اړوند (۴۳) مدرسو څخه یکې (۴۳) تنو طالبانو شرکت وکړ په دغه مقابلو کې شریکو ټولو طالبانو ښه په زړه پورې تقاریر وکړل په عربي، پښتو او فارسي ژبو کې چې؛ په دې اساس ټول ګډون کونکي یکې کامیاب وشمېرل شول.

البته د اول څخه تر لسم نمبر پورې د ښو نمبرو اخیستونکي طالبان د انعاماتو مستحق وبلل شول چې د کمیسیون لخوا ور ته په انعاماتو کې د کتابونو او نقدي مکافاتو تر څنګ د تحسین نامو تقدیر لیکونه هم ور کړل شول.

څرنګه چې د مدرسو دمسئولینو، استاذانو او طالبانو لخوا د دغو مقابلو ښه استقبال وشو او ښې پایلې یې ولرلې نو په دې اساس د تعلیم او تربیې کمیسیون هوډ لري چې دغه قسم مقابلې په نیز دې راتلونکي کې د دار الحفاظونو دطالبانو ترمینځ په حفظ او حُسن قرائت کې او هم د مکتبونو د شاګردانو ترمینځ په مناسبو موضوعاتو او اړوند مضامینو کې ترتیب او ترسره کړي اودغه لړۍ دهیواد په داخل کې ټولو تعلیمي ادارو ته هم وغزول شي.

او پـه دې هکلـه د ولايـاتو د تعلـيم او ترببـې رياسـتونو تـه هدايات ور کړل شوې دي چې ددغه مقابلو انتظام او اهتمام د داخل په مدرسو، دار الحفاظو او مکتبونو کې هم وکړي.

(۷) د تعليم او تربيې کميسيون دلائحې د(۹۳) مادې په اساس د دار الحفاظونو دانسجام پـه غـرض د تعليم او تربيـې د کميسـيون لخـوا دار الحفاظونو د مديرانو او دحفظ او تجويد په برخه کې د تجربه لرونکو مشهور استاذانو يو ورځينی سيمينار جوړ او تر سره شو، تر څو د دوی د تجربو، رأيو او مشورو پـه رڼا کې د دار الحفـاظونو د ښـه مـنظم کولو پـه منظور يو طرز العمل او يو لړ اصول او ضوابط وضع کړل شي چې دهغو پـه رڼـا کې دار الحفـاظونو کـې زده کونکـو طالبـانو تـه دحفـظ او تجويـد د پختګۍ سره سره د ديني ضروري فقهي اوعقيـدوي مسائلو، خط کتابت او حساب د ورښودلو اهتمام هم وشي، چې په دې برخه کې هم تر ډيره حده کار شوی دی.

په نژدې راتلونکې کې به ان شاء الله تعالی دغـه طرز العمـل او مقررات جوړ او د ذيصلاح مقامـاتو څخـه دمنظورۍ نـه پـس بـه د تطبيق او عملي کولو لپاره ټولو دار الحفاظونو ته ورسول شي.

او په همدې اساس د تعليم او تربيې کميسيون پـه نظر کې لري چې ان شاء الله تعالی د روان تعليمي کـال پـه پـای کې د (۱۱) رجـب المرجـب څخـه شـروع ديـوې هفتـې پـه جريـان کې د ټولـو دار الحفاظونو د کامل الحفظ فارغانو څخه مشترک امتحـان واخلي او بيا په دغه امتحان کې کامیابو فارغـانو تـه دحفظ ښـه معيـاري او معتبر سندونه ((شهادت نامې)) هم ورکړل شي دهمدې مطلب پـه هکلــه پــه (۲۰) د ربيــع الثــاني ټولــو اړونـد دار الحفاظونــه تــه دمتحدالمال مکتوب په ذريعه خبر ور کړل شوی دی او دمکتوب سره ضميمه په دې امتحان کې دطالبانو دداخلې مخصوصې فورمې هـم ور اسـتول شـوې دي چې دار الحفـاظونو بـه يـې دخپلـو فـارغو طالبانو د کوائفو سره سم ډک کړي او دنورو اجراءاتو لپاره بـه يې د کميسيون مرکز ته راولېږي.

(۸) د تعليم او تربيې کميسيون د لائحې د (۸۲ – ۸۳) مـادو په اساس په مکتبونو کې د مروجه تعليمي نصاب د اصلاح په منظور د کميسيون لخوا د دغه نصاب د ټولو صنفونود ټولو مضامينو کره کتنه تر سره شوې ده اصلاحات پکې راوستل شوې دي د کتـابونو کوم مضامين او مباحث او چې د شريعت مطهره د اساساتو يا افغاني دود او دستور سره متصادم ول هغه د يو مرتب جدول په شکل کې مشخص کړل شوي او شاګردانو ته يې لوستل منعه ګرزول شوي.

او د داسې قسم مضامينو پرځای نور داسې ضروري او مفيـد مضامين متعين او ور ته په ګوته کړل شوي دي چې پـرې دمکتـب دشاګردانو علمي سويې او مسلکي معيارونه اوچتېږي او ددوی پـه ضروري مضامينو کې مهارتونه غښتلي کېږي.

چې دغه اصلاحات اوور سره اړوند جدولونه په (۱۳) ورقو کې ترتيب او تيار کړل شوي او دهيواد او دهيواد څخه بهر دهجرت په ديار کې مکاتبو ته د تعليم او تربيې د کميسيون د مؤظف هيئت لخوا ورسول شوې او د تطبيق او عملي کېدلو چارې يې تر جدي څارنې لاندې دي.

(۹) د تعليم او تربيـې کميسيون د لائحـې د (۸۷) مـادې پـه اسـاس د مکتبونـو د ښـه مـنظم کولـو او داسـتاذانو او شـاګردانو د اصلاح او رهنمايۍ پـه منظور د کميسيون لخوا پـه (۱۹) مـادو کې اصلاحي هدايات اوضوابط مرتب شوې چې په دغو اصلاحاتو کې دمکتبونو دشاګردانو په مسلکي مضامينو کې دمهارت سره سره ددوی پـه دينـي او اسـلامي روحيــه تربيـت او ددينـي مضـامينو د ضروري مضامينو په حيث د رائج کولو او په دغه تعليمي ادارو کې دصالحو مسلکي ماهرو استاذانو دمقرر کولو په شمول د شاګردانو ديو نيفـارم او لبـاس پـه اسلامي ښـه او افغـاني دود او دسـتور برابر سـاتل او د اوسـني حـالاتو سره مطابق داسې نور ضـروري او اهـم هدايات شامل دي. چې دغه هدايات په داخل د هيواد کې او دهيواد څخه بهر په ديار د هجرت کې موجودو مکتبونو تـه د کميسيون د اړوند مؤظفينو لخوا ور رسول شوې دي. د تطبيق اوعملي کولو جدي څارنـه يـې د اړونـده مـديرانو، مسـئولينو او د کميسـيون د مؤظـف هيئت لخوا وخت په وخت تر سره کېږي.

(۱۰) د تعليم او تربيې کميسيون د لائحې د (۹٦) مـادې پـه اساس د کميسيون لخوا دعصري علومو ابتدائي او ثانوي مکـاتبو او

عالي تحصيلاتو اړوند تعليمي ادارو او پوهنتونو کې د کار کولو لپاره دمسلکي کدرونو په شمول اشخاص مؤظف کړل شوی دي چې دغه اشخاصو دخپل مسئوليت له مخې د کار په ساحه کې يو لړ پروګرامونه ترتيب او جاري کړې دي.

په همدې سلسله کې دهيواد په داخل او دهيواد څخه بهر اکثرو پوهنتونو کې دمحصلينو حلقې او ټولنې جوړې کړې شوې دي. چې يکې اسلامي امارت سره مخلص او وفادار محصلين تنظيم شوې دي. چې همدغه محصلين پخپلو ساحو کې داسلامي امارت د سپيڅلو ديني اهدافو لپاره کار کوي، او د کميسيون لخوا دمؤظف هيئت په توسط د عالي کميسيون سره هر وخت په تماس او رابطه کې وي چې د کميسيون لخوا رهبري کېږي او ور ته لازم او مناسب هدايات ور کول کېږي.

دغه مؤظف هيئت دپوهنتونو تر څنګ دهجرت په ديار کې په لويو ښارونو او مهاجر کيمپونو کې موجود افغاني مکاتبو سره هم په دوام داره توګه په تماس کې وي، رابطې ور سره لري هلته ورځي دنږدې څخه ور سره مجالس او ليدنې تر سره کوي هغوی ادارو پشنهادات اخلي او مشورې ور سره شريکوي په ستونزو يې ځان خبروي، او د اسلامي امارت لخوا چې ددوی سره په کومو برخو کې همکاري ممکن وي کومک ور سره کوي.

د ټولو مکاتبو د اداري مسئولينو، استاذانو او شاګردانو لخوا د کميسيون ددې پلاوي هر کلی او استقبال کېږي او په ور تلو يې ډير د خوشحالۍ اظهار کوي او هيئت ته دخپلې خوا څخه د لوائحو او مقرراتو په تطبيق کې رضا مندي ښکاره کوي او په دې برخه کې دپوره همکارۍ او اطاعت ډاډ ور کوي.

(۱۱) د تعليم او تربيې د کميسيون لخوا د روان مقدس جهاد دپاکو شهيدانو د يتيمانو لپاره دوه دار الايتامونه جوړ کړل شوې دي دي چې يو يې په کوټه او بل په پيښور کې موقعيت لري.

په دغه دار الايتامونو کې يتيمانو ته ديو اساسي او منظم تعليمي پروګرام مطابق د ماهرو استاذانو لخوا سبقونه ويل کېږي چې ور سره يې دسالمې روزنې لپاره هم پوره او خصوصي توجه هم کېږي. او په دغو دار الايتامونو کې د استوګنو يتيمانو د اعاشې اوهم اباتې په شمول ټول ضروريات حل شوې دي او ور ته د هر موسم مطابق مناسب اسباب، وسائل او امکانات برابر کړی شوې دي چې په دواړو دار الايتامو کې دا وخت د سلګونو يتيمانو تعليم، تربيت او کفالت کېږي. په دې وروستيو کې د کويټې دار الايتام لپاره څه دپاسه (۱۴) جريبه ځمکه هم اخستل شوې ده چې ان شاء الله تعالی په نيزدې راتلونکي کې به په دغه ځمکه په اساسي ډول ښه مجهز او په اوسني عصري وسائلو سمبال دار الايتام کړل شي.

د تعليم او تربيې کميسيون په نظر کې لري چې په دا ډول ځمکه او تعمير د پيښور دار الايتام لپاره هم برابر کړي. په دواړو دار الايتامونو کې د موجودو يتيمانو سره وخت په وخت د کورونو لپاره يو ه اندازه مالي کومک هم کېږي.

قدرمنو!

دا وه د اسلامي امارت د تعليم او تربيې کميسيون د فعاليتونو څو نمونې چې ستاسو محترمو حضور ته په اجمالي توګه وړاندې کړی شوې په پای کې: د تعليم او تربيې کميسيون دا واضحه کوي چې ديوې خوا د تعليم او تربيې اړونده چارې ډيره لويه او پراخه ساحه لري، او ډير کار کول غواړي او د بلې خوا په پوره اندازه د کار لپاره مناسب او ضروري وسائل او هم ميسر ندي.

نو لکه څنګه چې خو د کميسيون مسئولين او مؤظفين په فعلي شرائطو کې د خپلو امکاناتو مطابق د کار کولو کوشش کوي او په دې هڅه کې دي چې د تعليم او تربيې چارې تر ډيره حده ښې، منظمې او په صحيح توګه تر سره شي.

که چا سره هم د تعليمي چارو په هکله کومه صائبه رأيه، صحيح مشوره او سالم تنقيد وي د تعليم او تربيې کميسيون سره دې شريک کړي کميسيون يې هر کلی کوي.

و من الله التوفيق

د افغانستان اسلامي امارت د تعليم او تربيې کميسيون




## لاسونه

مولوي عبدالاحد حماد

ګـنهم راتــاو مــې تــر دعــاء دي د امــین لاســونه
چـې راچـاپیر دې دي تـر غـاړه مرمـرین لاسـونه

پریږدئ دا څانګه ، دا ګلدان او دا مالیار یې پریږدئ
هسـې نـه غـوخ کـړئ تـرې ناپامـه ګلـورین لاسـونه

شـهید شـفقه انتقـام دې بیګـا سـتورو واخیسـت
خـوني مابښـام اوس ښـکلوي دلمـر زریـن لاسـونه

شـــاید سـپرلی وي د غـــزا آســونه وششـــنېدل
چې شـازلمي وهـي پـه برېتـو یـا پـه زیـن لاسـونه

دجـال بـه بیرتـه بیـا شـړی لـه سـره ونښـلوي
پـه آریانـا کـې تـرې غـوخ شـوي دي لعیـن لاسـونه

زیـری ، بلبلـه ! مسـته زرکـه ! بغـدادي کـوترې !
د پـامیر څنـو تـه غځیـږي دنسـرین لاسـونه

رنګیـن ګـلاب ، زخمـي غـاټول او بـې پـروا سـنځلې
شـهید ګـودر نـه بیـا راتـاو کـړو عنبـرین لاسـونه

خـدای خـو دې راولـه طالبـه یـاره سـتړی مـه شـې
کابـل ویلـو راکـړه ښـکل دې کړمـه سـپین لاسـونه

عشـقه ترڅـو یـې کـړوې لادې ارمـان ونـه خـوت
پـه حمـاد شـنه شـولو دغـم او دنـاورین لاسـونه

## نسیم ته !

ملا اسدالله حنیفي

ته چې ځې دسباباده دیثرب لورته په تلوېې
څوسلګۍ درسره ملې کړه، څویادونه درسره کړه

څومره بندیې، څومره بندیې چې روان یې مدینې ته
دمعموم له کور کهول نه سلا مونه درسره کړه

دمهجور زړګي له تله څو زګیر وې درسره یو سه
دهجرت له کاشانې نه فریادونه درسره کړه

په زارو درته زارې کړم ته چې ځې دسب د ده
دمجنون له ېس بانه څو سو، لونه درسره کړه

څومره بخت در کړی رب دي چې یثرب ته روانیږې
دپردیسو له کوڅې نه څو یادونه در سره کړه

دغه بخت دې بختورشه دغه بخت دې مبارک شه
چې ورځې دیار حرم ته د، ویرونه درسره کړه

داسید دغرو له څوکو رو، ښږې چې حجاز ته
داد اوښکو قافلې اوکارو، نونه درسره کړه

ته چې ځې دسب باده دردیار دپیغمبر ته
دافغان له ورانه کوره ږغمونه درسره کړه

ورشه عرض وکړه حبیب ته دېیوزله یتیمانو
نتواتې ورته یوسه پیغامونه در سره کړه

د، ډالی د» حنیفی «ده دجانان لورته یې ېږي
له سرو وینوڅخه ډک د، جامونه در سره کړه

# غشي او لیندۍ

سمیع الله تړون

دمجاهد اشنا چی غشی له لیندۍ ووځي
هغه شیبه د یو ظالم له ککرۍ ووځي

چی د جهاد جذبه په کوم اولس کی نه وي پاتی
هغه اولس له ژوندانه او نیکمرغۍ ووزي

د شهید خورې ستا په ویر کې دومره زور پروت دی
لکه د خولې نه چې تېه دملالۍ ووځي

چې په کابل ، برما ، بغداد او کشمیر نه شو خپه
نو فلسطین به خامخا له ازادۍ ووځي

چې د وطن دناوې شال څوک په پردیو پلوري
هغه سرونه له شملو او له بګړۍ ووزي

مور دې نړۍ کې یوه بله شان نړۍ جوړوو
اعلان به وکړو دا نړۍ دې له نړۍ ووزي

په زنګنونو کې د هغه چا پېښې غوځوو
د چا پښې چې له څادر او له شړۍ ووزي

د جبر غشي دي زما مخې ته مه راوله
په خدای قسم دی که تړون له شاعرۍ ووزي

# دانقلاب ملګري

محمد الیاس "فاتح"

راته یادېږي هم په ویښه هم په خواب ملګري
خدای زده چې چېرته رانه ورک شوي جناب ملګري

دخپل وطن له غېږې وشکول ډېرزر مجبورۍ
پردي وطن کې تېروي شپې دشباب ملګري

دنګې ځواني یې دجنګونوبلاوخوړلې
شول دبمونوپه انګار کباب کباب ملګري

هسې خوټول جهان په رنګه رنګ ملګرو ډک دی
خوزنده باداوزنده بادانقلاب ملګري

چېرته چې خړه مدرسه اوخړجومات وګورم
دستر ګوډنډ کې مې غوپه شي دکتاب ملګري

دزړه له تله چې دمېنې زندګي تېروي
هابه دژوندپه امتحان کې وي کامیاب ملګري

دانقلاب خزانه ! دومره زیاتی ولې کوې
چې رانه وړې ښایسته ښایسته ګلاب ګلاب ملګري

په وطن ننګ دی بیاورځي فاتح دجنګ ډګرته
تیاروي مستوزلموکې انتخاب ملګري



اسم امید

# وروستیو فدایي بریدونو

## دامریکا، ناټو او کابل رژیم پښې ولړزولې...

د معمول خلاف لا تراوسه دهېواد غرونه په سپینو وارو پوښلي اوساړه ژمي خپله کمبل نده ټوله کړي ،د هېواد په لر اوبر کې دګرمو عملیاتو غړونه پورته شول

دمارچ په ۲۰مه دختیځ دلوی ښار (جلال آباد) په زړه کې دننه دولایت په مقام،د قصرپه ماڼۍ اوپه لومړۍ امنیتي حوزه ځلوروفدایي قهرمانانو په حیراوونکي دقیق او کامیاب برید دکفرپال او صلیب پال ائتلاف دګوډاګیانو سینو کې زړونه وچول.

بریښې چې ددغه هدفمن برید اهداف په پوره پوځي مهارت او دقت ټاکل شوي وو، دخبرې سرچینو په وینا: دغه برید سهار پنځه بجې شاوخوا پیل او تر پنځه ساعته کامیاب مقاومت وروسته دفدایانو په شهادت پای ته ورسید.

دمحترم زبیح الله مجاهد له لوري سنیو ته په استول شوې خبر پاڼه کې ددغه برید په اړه راغلي: دبرید پیل کې فدایي مجاهد (عبدالله کند هاري) له چاویدونکو توکیو نه ډک مازدا موټر دلومړۍ امنیتي حوزې له ودانۍ سره وجنګاوه، وریسي جوخت په سپکو اودرنو وسلو مجهز او سمبال درې تنه مجاهدین (دننګر هار عبد الرحمان، دکابل محمد ایوب او دلوګر رحیم الله) دودانۍ درې یم پوړ ته

د ختلو سره یوځای د ډار ن دښمن په عسکرو،د ولایت مقام په ودانۍ او دقصر په ماڼۍ دخپلو وسلو خولې ورتاوکړې او په لږ وخت کې یې ګڼ شمېر پولیسو او دلاسپوڅي دولت مامورینو ته درنه مرګ ژوبله واړوله، کله چې دغلام رژیم کومکي ځواکونو غوښتل چې دبرید ځای ته ولاړشي، په خاصه توګه واکنش په نوم قطعې ، دبرید ځای ته درسیدو سره سم په هغوئ د ځانګړې پوځي تاکتیک نه په کار اخیستو، چې په اړه یې آماده ګې له وړاندې نیول شوي وه دجلال آباد ښار والۍ ته څېرمه پښتونستان واټ کې او دقصر دماڼۍ په مخکې په درنو چا ودنو سره لویه مر ګ ژوبله وریپښه شوه، په دې سره ټول کومکي عسکر په شاه و تښتیدل، ترپنځه ساعته کامیاب مقاومت وروسته جنګ ددرې واړو فدایانو په شهادت پای ته ورسید، دمجاهد په وینا :دلومړي لاس معلومات دادي: چې دلومړۍ امنیتي حوزې دآمر ، دواکنش قطعې معاون په ګډون ۲۹ پولیس مړه او ۴۳ ټپیان ، هم دا راز ګڼو دولتي ودانیو ته زیان واوښت.

جلال آباد کې دیاد برید لوخړې ختې ،په ورته ډول پلازمینه (کابل) کې ماسخوتن ۹ بجې په سرینا هوټل ځو زړورو غازیانو په بریالي برید کې ګڼ بهرنیان او کورنې غلامان مړه او ټپیان کړل

دیادونې وړده چې سرینا هوټل دارګ تر زنې لاندې پروت دی او یکې دخارجي ځواکونو لوړرتبه او ټیټ رتبه عسکر په عیاشیو، مستیو اوبد اخلاقیو او ساعت تیریو بوخت وي په دې وجه چې ارګ ته لنډ واقع دی، دامنیتې پلوه دنورو هوټلونو په نسبت دبهر نیانو دتفریح لپاره یوځه خوندي ځای ګڼل کیده اوترډیره بهرنیان په امنیت یې ډاډمن وو، خو مجاهدینو په برید کولو وښوده چې د خار جیانواو دهغوئ دغلامانو لپاره هیڅ ځای خوندي او ډاډمن نه دی او دمجاهدینو دپولادي عزم په وړاندې ټول امنیتې تدابیر، پلانونه او کمربندونه مات او بیکاره دي دخبري راپورونو له مخې :د سرینا په برید کې په لوی شمیر بهر نیانو او کورنیو اجیرانو ته مر ګ ژوبه رسیدلې، هم دا راز جوته شوه چې دکابل رژیم ټوله مشنرۍ له کاره لوېدلي، دا توان نه لري چې دمجاهدینو تندریزو بریدونو تاب راوړي او بهرنیان هم ښکاري چې دپښو ټینګولو په ځای زیات پام دپښو ویستلو ته لري.

په ورته تو ګه دکاپیساه په تګاب کې ددښمن په لوی کتار یوې درنې چاودنې دخوست ولایت په علیشیرو کې په کمپاین برید، دکونړ په مرکز اسعد آباد کې ددښمن په معاش اخیستونکو پولیسو برید دسر درانه زیانونه اړولي ، بیا دهېواد په پلازمینه (کابل) دشپږمې حوزې اړوند کارته سه کې دمنسوخ عیسوي دین په یوه کلیسا برید هم دښمن ته درانه زیانونه واړول، کوم چې دامریکا سفارت له لورې منسوخ عیسوي دین ته دافغانانو ددعوتولو چارې د مختلفو نومو نو اوپلمو پرمخبیول، دکلیساه له و دانۍ سره دفدایي مجاهد( محمد زمان( پکتیا) دچاودیدونکو تو کیو د ډک موټر دجنګولو وروسته درې فدایي مجاهدینو (دمیدان وردګ زبیح الله ، دلوګر محمد اسماعیل او دکندز عبید الله) چې په سپکو اودرنو وسلو سمبال وو ودانۍ ته ننو تل او هلته په راټول شویو بهر نیانو یې دالله اکبر په ملکوتي ناره برید پیل کړ چې له امله یې لوی شمیر خارجیان مړه اوټپیان شول، داشان دنهمې حوزې اړوند په پکیتا کوڅ سیمه کې دروانو تحمیلي ټولټاکنو دکمیسیون په عمومي دفتر په یوه هدفمن برید کې درې تنو زړورو مجاهدینو ( دزابل ملا محمد قاسم، حافظ قدرت الله او محمد اقبال) لخوا په برید کې ددغه کمیسیون ټول اسناد، ډیپوګان او هلته ولاړ نقلیه وسایط داو ر په لمبو کې وسول، هم په لوی شمېر د کمیسیون مامورینو ته مر ګ ژوبه واوښته.

دا یو ائې دځو په شمار بریدونو سرسري یادونه او یادابښت دی چې ترې دا نتیجه اخیستل اسان دي چې دامریکا اوناټو یرغل په بشپړ ډول ناکام شوی دی، هغوئ چې دکومو بدو عزایمو په موخه راغلي هغه یې ترلاسه نکړل، اوس دادی دتیر دولس کلن جهاد اومقاومت په بر کت دهېواد دازادۍ سپین سباون په راختو دی، غلیم دخپل ټول سازو سامان او دبدبې سره افغانان دځان غلامان نکړای شول، دپوځي کارپوهانو په وینا: که راتلونکي دوبې کې هم مجاهدینو دخپلو تعرضي بریدونو لړۍ هم داسي روانه وساتله څنګه چې په دې لنډه موده کې ولیدل شول نو حتمي او یقیني ښکاري چې بهرنیان به خامخا وتلو ته او دکابل رژیم دسقوط ته اړ کېږي لیکن دابه راتلونکی وښیي چې مجاهدین څومره کولی خپل بریدونه داسي روان او جارې وساتي، په دې اړه سرله اوس نه څه ویل ګران دي، باید مجاهدین دیته ښه ځیر اووسي چې راتلونکی بر ی تر دقیقو او هدفمنو عملیاتو پورې تړلی دی که دوئ هم داسي په دښمن دڅوند کړۍ تنګه وساتله نو داهیله مندي ډېره لرلی شوچې خدای (جل جلاله) کول افغانستان به له دې غلامانه حالت نه نجات ومومي.

# دمعجزانه بهار پیروزینې او لورینې...

شمس. م.ر

پوهان وايي: ژبه مقصود اوهدف نده، بلکې دپوهاوي او ابلاغ دپاره وسېله ده، چې د ظاهري او معنوي دواړو له پلوه لوی اهمیت لري، نړۍ کې خپلواک او ازاد ولسونه اوقومونه چې د کومو ځانګړ تیاوو او صفاتو په لرلو له نورو جلا پېژندل شوي ، په هغو کې یوه ژبه هم ده، د ژبې په واسطه انسان خپل "مافی الضمیر" څرګندوي او له دې لارې خپلو سوچونو اوفکرونو ته دلفظونو قالب وراغوندي.

نن سبا دژبو اهمیت نور هم زیات شوی، په دې چې د تاریخ او ماضي نه دیوه ولس دپریکون اوقطع کولو لپاره ترټولو لنډه او اسانه لار داټاکل شوې چې له هغه نه خپله ژبه هېر کړای شي اوپه ځای یې پردۍ ژبه ورباندې تحمیل کړای شي، مشهور مؤرخ "ټاین بي" پخپل کتاب (مطالعه تهذیب) کې لیکلي: پخوا څو پاچایانو د مخالفو هېوادو اشغالولو وروسته دهغوئ کتابتونونه و سېزل مثلا: اندلس کې عیسایانو دمسلمانانو سترو کتابتونو اوعلمي خزانو ته اور واچاوه ، ددې نه به دهغوئ موخه د خپلې ماضي اوتاریخ نه دولسونو پریکون اوبېلتون وو، خو ترکیه کې مصطفی کمال (اتا ترک) ددې هدف ته درسیدو لپاره ښه آسانه لار غوره کړه، دکتابتونو سیزلو دتور اخیستو په ځای هغه دترکې ژبې لیکدود (رسم الخط) بدل کړ، که څه هم کتابتونونه یې خوندي پریښودل، خو راتلونکي کې له هغو د څو سپین ږیرو پرته بل چا ګټه نشوای پورته کولی.

نن سبا دمصطفی کمال دلارې نه هم ډېره خطرلرونکې لار غوره شوې، هغه داچې کتابتونونه به پخپل حالت خوندي پاته وي، لیکدود به هم هغه وي، لیکن دخلکو لپاره به په خپله ژبه لیک لوست اوخبرې اجنبي وي، دخپلې ژبې دعلمي او ادبي الفاظو په لیکلو او لوستلو کې به یومخ کمزورې حسوي، له خپلو علمي او ادبې سرچینو نه به ګټه نشي پورته کولی ، څنګه چې نن په زیاترو اسلامي هېوادو کې مسلمانانو دخپلو مورنیو او سیمیزو ژبو په ځای دانګریزي لیک لوست ته په مخه کولو ، په عامو خبرواترو کې انګریزې کلمې بیدریغه کاروي او پرې ویاړې هم.

ښکاره ده چې هر کله یو ولس له خپل تاریخ او ماضي نه جلا شوی، هغه د خپلو تاریخي او کلتوري میراثونو نه محروم شوی ، له خپل ملي هویت او قدارونه یې لاسونه وینځلي اوعملاً د پردي هویت قالب ته په لوېدو دمر ګ تر کومي لاړ دی او دملي ژوند نبضونه یې دتل لپاره درېدلي. دترک مصطفی کمال مثال وړاندې تیر شو، هغه ددې لپاره چې له ځانه لوېدیځوال خوشاله کړي، دترک قام ددین اوملي اقدارو سره د مخه ښې کولو پخاطر دترکې ژبې لیکدود تغیر کړ ،دتعجب وړ دا چې هغه دا ګام دتر کانودملي هویت خوندي ساتلو په پلمه پورته کړ، حقیقت کې هغه دترک ولس په ملي هویت اودیني ارزښتونو خاورې امبار کړې، چې له امله یې تر ننه دتر کانو په تندو د خوارۍ او رسوایې داغ پاته دی دهغه دغلامانه کردار داحشر شو چې تر کانو لوېدیځ ته دسوال ځولۍ غوړولي اوترې د ناټو په سازمان کې غړیتوب غواړي، په منتو نو او زاریو یې لوېدیځوالو ځانونه کاڼه کړي کله یې په یوه او کله په بله پلمه تیرباسي، عظیم الشان قرآن څومره رښتیا ویلي:

**ها أنتم هؤلاء تحبونهم ولايحبونكم**

هغوئ هغه خلک دي چې تاسي دوئ غواړئ لیکن هغوئ تاسي نه غواړي.

له پورته تمهید وروسته رابه شو دیته چې د ژبو ساتنه داسلامي شریعت داحکامو په رڼا کې څه ډول ارزښت لري؟ او اسلام دادب دودې او ترقۍ لپاره څه کړي؟

په ټوله کې علوم دوه ډوله دي، ۱- دیني ۲- مادي.

ددیني علومو غرض او غایت دمادي علومو دغرض او غایت نه جلا دی.

ددیني علومو غرض دالله (ﷻ) در ضاحاصلولو سربیره دبشریت سمه رهنمائي او ورته سهي لار ښودل دي ،هر چې مادي علوم دي! دهغو غرض د واضع او جوړونکي دذهن زیږنده دی، که دهغه ذهن سالم وي، علم هم سالم زیږي او که ذهن يې خراب وي علم هم خراب زیږي، په بله ژبه:دبشر له ذهن تراشلي علوم دغرض اوغایت له پلوه یاددین سره متصادم وي او یا موافق، که متصادم وو، د حکم له پلوه پکې اشتغال ناروادی، لکه موسیقي چې نن سبایې دهنریت په نوم دجلا فن بڼه موندلې، پکې اشتغال داسلامي شریعت لارښوونو له مخي ناروادی، که موافق وو لکه: ریاضي، منطق، فلسفه، ادب، شعرو شاعرې، نثر لیکل اوداسي نور... یادول او پکې اشتغال روادی، تردې که یو تن پورته یاد علوم ددین تقویه کولو په نیت حاصلوي،غوره (مستحسن) عمل دی.

بل نن سبا زیاته اړینه ده چې مسلمانان ددیني علومو ترڅنګ دمادي او دنیاوي علومو وسله هم پخپل لاس کې ولري، څنګه چې اسهغهلام نړیوال دین دی، دنړۍ په هر قوم او هرې ژبه غږیدونکو له منځه لوی شمیر خلک مسلمانان دي، په خاصه توګه هغه ژبې چې ټول ویوونکي يې مسلمانان دي،دهغو ساتنه، پالنه او پکې داسلامي علومو خدمت شرعي مسولیت او وجیبه ده،باید مسلمانان دهغو په ساتنه کې داستطاعت ترحده ونډه واخلي، د اسلامي نړۍ ثقه عالم مولانا اشرف علي تنهانوي (رحمه الله) ته په هندوستان کې داردو ژبې کانفرانس جوړونکو په کانفرانس کې دګډون بلنه ورکړه،نوموړي هغوئ ته پخپل یولیک کې ولیکل:

ستاسي لیک په لوستو مې زړه کې خوځښت راغی، چې درسره دې خدمت کې برخه واخلم، لیکن د عملي خدمتونو صلاحیت او قوت په ځان کې نه وینم ، غالباً یو خاص خدمت چې هغه ته چا پام ندی اړولی، دادی چې:ددې تحریک شرعي درجه څه ده؟ ددې ضرورت له مخې چې دې مسلې دتمدن او قومیت په ځای ډیره دمذهب بڼه موندلي ، فکرمې وکړ، چې په لنډو ډول څه ولیکم او تاسو ته يې درواستوم:

په لیک کې دځو ایاتونو ،دحدیث اوفقهي روایتونو راوړو وروسته يې د شرعي حیثیت په اړه نتایج اخذ کړي، دتمهیداو سریزې وروسته حضرت (رحمه الله) لیکي:معلومه شوه چې داردو حفاظت (داردو ژبو لپاره)ددین حفاظت دی، په دې وجه دغه حفاظت داستطاعت تربرید طاعت او واجب دی، دقدرت باوجودپه په اړه یې غفلت او سستي معصیت او په اخرت کې دمواخذې موجب ګرځي (امداد الفتاوی ۴ټوک ۲۵۵مخ)

معلومه شوه چې دمسلمانانو دژبو ساتنه ددې لپاره چې پکې ددین حفاظت اوساتنه هدف وي، په لیک لوست او ترقۍ کې یې ونډه دوس تر حده شرعي وجیبه اومسولیت دی.

روښانه ده چې داسلام وړاندې عربانو خپل اولادونه له ښارو بیرون کلیوالو سیموته ددې لپاره استول ،څو هغوئ دکلیوال چاپیریالنه په ګټه سوچه عربې یاده کړي، دښارونو په نسبت دکلیو الو سیمو ژبه د نورو ژبو سره له خلط ملط نه پاکه وې، دعرب کوچنیان چې کله په خبرو راتلل شاوخواچاپیریال به ورته خالص عربي او دنورو ژبو له اغیز صاف وو، دې لړ کې رسول الله (ﷺ) هم دحضرت حلیمه (رضي الله عنها) سره له مکې نه لیږل شوی و. څو هلته په خالص عربي چاپیریال کې عربې ژبه یاده کړه.

کله چې درسول الله (ﷺ) بعثت وشو، په عربو کې یواځې هغه سړی ممتاز او محترم وو ، چې هغه به په ادب کې ترنورو پو اوماهرو، په ټولنه او خلکو کې یې درناوی زیات و، کوم سړی به چې له ادبې پوهې نه محروم اوبې برخې و، هغه ته یې په سپک نظر سره کتل، په ټولنه او خلکو کې چندان حیثیت یې نه لاره اګر که نور به هوښیار، عقلمند، زیرک او له ډول ډول صلاحیتونو نه برخمن وه، دعزت منصبونه یو اځې هغه چا لپاره وو چې هغه په ادب کې نومیالی او وتلی وه. څنګه چې ددې لاندې کیسې معلومیږي:

درسول الله (ﷺ) نیکه عبد المطلب اویو بل رئس ترمنځ په مشرتابه سیالي وه، هغه بل تن ویل زه له تا اهل یم، دواړو ترمنځ

دمناظرې اوبحث ورځ تعین شوه او پرېکړه وشوه  که هر یوه خپل سیال ته په خبرو او ادب کې ماته ورکړه هغه به دقوم سردار  اومشروي، دمناظرې او بحث وروسته ، درېمګړي عبد المطلب دمناظرې وړونکی اعلان کړ اومقابل تن ته یې وویل:

ایا ته دداسې شخص سره دسیالۍ کوې، چې دادب روان سمندر او عربي ژبه یې دکاله وینزه ده؟

ادب سره عربو دزیاتې مینې په وجه دومره ترقي ورکړې .چې په هره قبیله ، هر کلي ،هره تپه او هره سیمه کې ادبي بنډارونه جوړول، دشاعرانو ترمنځ سیالۍ او مقابلې کېدې، مقابلو کې بری موندونکي شاعران دبنارونو مقابلو ته بیول کېدل، د"عکاظ" مشهور بازار دهمدې شعري او ادبي مقابلو لړۍ وه، ددیني مدرسو په درس نظامي کې مروج کتاب "سبعه معلقه" (اووه قصیدې) ترننه دهمدې ادبي بازار (سوق عکاظ) محصول اویاد ګار دی.

کله چې رسول الله (ﷺ) دالله (جل جلاله) داستازي په حیث هغوئ خپلې اتباع ته وبلل، دود سره سم هغوئ دمعجزانه ادب غوښتنه وکړه، الله (جل جلاله) درسول الله په ژبه داسې کلام نازل کړ، چې دادبي شان یې په وړاندې عرب عاجزشول، دډېرو په زړونو کې دمقابلې فکرونه ګرځېدل، خوله وس یې پوره نه وه، تردې چې عظیم الشان قرآن ټول انسانان اوپیریان چیلنج کړل:

قل لئن اجتمعت الانس والجن على ان يأتوا بِمِثْلِ هذا القرآن لايأ تون بمِثْله ولو كان بعضهم لبعضٍ ظهيرا...

که انسانان او پیریان جمع شي په دې چې د(قرآن) مثل راوړي، هیڅکله به یې رانه وړای شي اګر که له یوبل ملاتړي وي (بنی اسرایل ۸۸ایت)

هم داراز دهود سوره ۱۳ ایت، او دبقره سوره ۲۴، ۲۳ایتونو کې دعربو ټول ادیبان او شاعران ننګول شوي،  که دوئ ته شک وي، په هغه کلام کې چې مونږ پخپل بنده نازل کړی دی نویوسورت دي دهغه پشان راوړئ، خو دعظیم الشان قرآن دمعجزانه اثر په وړاندې دعربو ټول شاعران او ادیبان مخ په سجده شول، تردې چې په ډېرو دومره زیات اثر وشو، چې دشعرویلو نه یې توبه وویسته، لکه نومیالی عرب شاعر "ولید بن ربیعه" چې دخپلې معر کة الارا معلقې په وجه په ټولو عربو کې شهرت لاره، کله چې قرآن پاک هغه واریده، دومره متاثر شو چې دقرآن په مقابله کې دکلام راوړل خولري خبره دشعر ویلو یې توبه وویسته اوپاته څلویښت کلونه یې په اسلام تیر کړل په دغه موده کې یې یواځې یو شعر ولیکه هغه دادی:

ماعاتَبَ الحر الكريم كنفسه
والمرء يصلحه الجليس الصالح

او داغاني په روایت:

الحمد الله اذ لم يأتنى اجلى
حتى لبست من الاسلام سربالا

ددېنه علاوه داسلام راوړو وروسته په ټول ژوند کې شعر ندی ویلی هر کله به چې ترې دشعر ویلو غوښتنه وشوه دعظیم الشان قرآن تلات به یې شروع کاوه او فرمایل به یې... ابد لنى الله خير أمنه.

دوینا سمندر :

دعظیم الشان قرآن دمعجزانه صنعت اعجاز نه علاوه پخپله رسول الله (ﷺ) دطبعي فصاحت روان سمندر وه په هره خبره اوجمله یې دفصاحت او بلاغت نوی،نوی باب لیکه اوفرمایل یې: اوتِيتُ جوامع الكلم... زه له جامعو کلمو اوجملونه برخمن ګرځول شوی یم. اود عربي مشهورې مقولې (کیفما کان الکبیر صار صغیر على اثره...) ته په پام: درسول الله (ﷺ) ملګري (صحابه هم دادبي محفلونو نومیالي وو، دعربو شاعرانه سیالیو او دعکاظ بازار ادبي بهیر په وجه دهغوئ دننه دادب ذوق راټو کیدل طبعي وو ،رسول الله (ﷺ) دهغوئ ددې ذوق هڅونه اوقدرونه کوله لکه یوه ورځ یوه صحابي "کعب بن زهیر" (رضي الله عنه) درسول الله (ﷺ) په ستاینه کې قصیده ویله کله چې هغه دا بیت ووایه:

ان الرسول لسيف يستضاء به
مهند من سيوف الله مسلول

بیشکه رسول الله(ﷺ) یوه داسې توره ده، چې ورنه رڼا اخستل کېږي او دکفارو لپاره له تیکي وتلې.

رسول الله (ﷺ)هغه ته په انعام کې خپل څادر ورکړ ، کوم چې بیا له هغه نه حضرت معاویه (رضي الله عنه)په شل زره درهمه واخیست (مسند حاکم) نوپه دې ډول به رسول الله (ﷺ) دهغو صحابه وو هڅونه کوله چې دشعر له ویلو او ادب سره دهغوئ مینه وه . البته رسول الله (ﷺ) به هغوئ ترغیبول چې بامعنی اشعار ووایې، دهغو شعرونو له ویلو ډډه وکړي چې تش مقفه او مسجع الفاظ وي خو بې معنی ! په دې اړه دحدیثو په

ذخیره کې د رسول الله (ﷺ) لخوا مدحیه کلمات او الفاظ موندل کېږي، مثلاً:

(ان من الشعر لحکمة..... الحدیث)

بیشکه ځینې اشعار بامعنی وي

(ان من البیان لسحرا الحدیث...)

له شبهې پرته په ځینو ویناوو کې دجادو اثر وي.

ددې نتیجه دا شوه چې د ادب په میدان کې صحابه وو بامعنی اشعار ویل، په دې سره یې دجاهلیت د دور ډېر لوی نومیالي شاعران او خطیبان هم له ځان وروسته پرېښودل، په دې لړ کې دصحابه وو هغه مناظرې، قلمي معرکې، اوادبي بحثونه که راټول شي باور دی چې کاغذ به ختم اوقلم به ستړې بشپړ به نشي. دنهج البلاغه مصنف دحضرت علي (رضي الله عنه) دویناوو ټولګه لیکل پیلکړه ترې پنځه ضخیم ټوکونه تیار شول.

ددې څخه ښیله اندازه کېږي چې داسلام په لومړي دور کې ادب تـه څومره پاملرنه شوې، او صحابه وو دخپلو ګڼو مصروفیتونو باوجود ور ته څومره وخت ور کړی وو؟ هم دا راز دقلمي جهاد په میدان کې صحابه وو کومې کار نامې تر سره کړې؟ او څومره معر کې کړي؟ په دې اړه بحث اوږدول شاید دلته شونی نه وي. البته دیوې واقعې په راوړو اکتفا کوو:

دهجرت په نهم کال محرم میاشت وه رسول الله (ﷺ) بشیر بن سفیان عدوی (رضي الله عنه) دزکاتونو راټولولو لپاره یوې سیمې ته واستاوه، دهغه ځای خلک ور کولو ته تیار شول خو بنو تمیم مزاحم شول هغوئ و ویل: په الله سوګند چې له دې ځایه به یو اوښ هم بونه ځي، او له تورو سره راووتل. بشیر ددې په لیدو راغی، رسول الله (ﷺ) د"عیینه بن حصن فزاري" (رضي الله عنه) په مشرۍ پنځوس کسان دسقیا په نوم سیمې ته ولیږل چیرې چې بنو تمیم اوسیدل، داسیمه له "جحفه" نه اوولس میله په فاصله پر ته وه، دشپې صحابه وو په هغوئ چاپه واچوله، یوولس سړي، یوویشت میرمني اودیرش کوچنیان یې ونیول او مدینې ته یې بوتلل، بنو تمیم مجبور شول او دلس تنو وفد یې رسول الله (ﷺ) ته واستاوه، کله چې مدینې ته ورسیدل در سول الله (ﷺ) دحجرې له شاه نه یې غږ وکړ اې محمد(ﷺ) راووزه! مونږ سره په شعر کې مقابله وکړه زمونږ مدح زینت ده او ذم مو عیب دی، رسول الله (ﷺ) وفرمایل: داخو دالله شان دی، بیا رسول الله (ﷺ) لمونځ وکړ، دلمانځه وروسته هغوئ رسول الله (ﷺ) ته وویل: مونږ دمفاخرې لپاره راغلي یو ته زمونږ شاعر او خطیب ته دوینا موقع ور کړه، رسول الله (ﷺ) وفرمایل: اجازه ده، دبنو تمیم عطاربن حاجب پور ته شو هغه فصیحه اوبلیغه وینا وکړ، بیا رسول الله (ﷺ) ثابت بن قیس انصاري (رضي الله عنه) ته وویل پور ته شه دوئ ته ځواب ووایه، سملاسي ثابت (رضي الله عنه) ودرید فی البدیهه یې اوږده وینا وکړه او د بنو تمیم دخطیب په ټولو دعوې مدلل نقد وکړ.

بیا "زبرقان بن بدر" یوه قصیده کې خپل مناقب او ویاړونه بیان کړل، رسول الله (ﷺ) حضرت حسان (رضي الله عنه) ته وفرمایل: ته دوئ ته ځواب ووایه! حضرت حسان (رضي الله عنه) هم فی البدیهه قصیده وویله، په دې سره په هغوئ دمسلمانانو رعب پریوت او "اقرع بن حابس" پور ته شو هغه وویل: سو ګند په الله! ستا سو خطیب زمونږ له خطیب اوستاسي شاعر زمونږ دشاعر نه لوی شاعر دی بیا ټولو اسلام قبول کړ، رسول الله (ﷺ) ټولو ته ډالۍ ور کړې اوهم یې دهغوئ ټول قیدیان ازاد کړل (زرقاني ۳ټوک ۴۵.۲۴مخ)

در سول الله (ﷺ) ددې لوړینو په نتیجه کې داسلامي خلافت په ټولو دورو کې دادیبانو قدرونه کیده تر دې چې دبنو امیه وو دربار ته دنورو نومیالیو ادیبانو دتلو راتلو سربیره مشهور نصراني ادیب او شاعر "اخطل" هم راته او په هر کلي بدر ګه کېده او دهغه مهال په مقربو درباریانو کې شماروه، دعبد الملک بن مروان په څېر پاچا ته "اخطل" داذن غوښتو پر ته ننوت، هم داشان "فرزدق" او "جریر" ددغه پیر داادب ځلاند ستوري وو، داسلامي نړۍ ترهر کونج او برخې دهغوئ دشهرت هنګامه خوره وه، هغوئ ته د ادبي استفادې لپاره د لرې لرې سیمو نه دشعر او ادب مینوال راتلل، په حکومتي تشکیلاتو کې "دیوان الانشاء والرسائل" په نوم ځانګړې اداره وه، پکې دتقابل اصولو ته پرېـام نومیالي او لوی ادب پوهان اوشاعران ګومارلي وو، هغوئ به په شعر، نثر، بلاغت، معاني، بیان او په خطاطۍ کې ځوان استعدو دادونه روزل، هغوئ په شعر، نثر او ادب کې وخت په وخت نوښتونه راوستل، په زړه پورې اسلوبونه اوسبکونه یې په ګوته کول، دادبي اصولو اوقواعدو جوړولو لړ کې یې بېلابیل نظرونه ور کول، نومیالی قواعد پوه "عبد الحمید" هم په دې څانګه کې دنده سر ته رسوله، د امیه وو له زوال پسي دعباسیانو دوره کې دعربي ادب تر څنګ دعجمي ادب دترقۍ اوپرمختګ هڅې هم پیل شوې اودخلافت تر څارنې لاندې د سیمېزو عجمي ژبو د ادبي ودې او ترقۍ لړۍ پیل شوه، په دې تو ګه دعربي ادب تر څنګ عجمي ادب هم د ترقۍ پړاوونه ووهل، په خاصه تو ګه فارسي

ژبه او ادب خو ډېر وځلول شو، ایرانې مسلمانانو دخطاطۍ فن او فارسي ادب دعروج اسمان ته ورساوه، له همدلته نه دعربې ژبې او ادب وروسته فارسي او ایرانې ادب دخلافت تر بیرغ لاندې ګڼو ښارونو اوسیمو ته تیت اوخور شو، هم دارازدفارسي سرپیره ترکي ژبې او ادب هم دعباسیانو په دربار کې دترکانو دځواکمن نفوذ او واک په وجه د ارتقاء په لوری یون پیل کړ، ګڼ ترکي ادیبان او مفکران یې پیدا کړل.

پښتو ژبې او ادب هم املائي ،انشائي او علمي پانګه داسلام او عربي ژبې موندلې، اسلامي دورې ورته ګڼې ظاهري او معنوي ښکلاوې ښنلې او ډېر څه یې له اسلامه ترلاسه اویاد کړل لـه دې وجې دپښتو په املاء او انشاء کې دیني او عربي رنګ جوت تر ستر ګو کېږي، روحاني بزرګانو اومشایخو په پښتو کې دخپلو اصلاحي موعظو او ارشاداتو بهیر په پیلو لو یومخ دپښتو ادب په ترقۍ کې د مخکښ قایدانه رول په تر سره کولو سره پښتو ادب ته آفاقي ژوندون وباښه

افسوس چې نن ورځ د همدې ژبې په املاء انشاء اولیکلو کې دیني قشر کمزوری لیدل کېږي کومه چې د دیني علماوو او پوهانو دقلموال کردار په برکت تر او سني ځایه رسیدلې په ورته تو ګه فارسي ژبه هم نن ددیني لوري لپاره په اجنبي کیدو له پامه غورځیدلې دوخت او حالاتو غوښتنه داده چې دیني حلقات باید دوخت او زمانې نزاکتونه درک کړي، نن ورځ میډیا او عامه ابلاغ دخلکو، ولسونو او پرګنو په جوړولو او له ځان سره مل کولو کې اساسي رول لري، داسلام دښمنان هڅه کوي مسلمان ملتونه دمیډیا ترپوښښ لاندې بې لارې کړي، وربانډې انحرافي افکار تحمیل کړي، ددې لپاره ضروري ده چې مسلمانان پخپلو ژبو کې ددیني معلوماتو زیاته پانګه خوندې کړي.

افسوس! یوشمیر خلک ددې په ځای چې هغوئ پخپلو ځانو نو کې داتوامندې او حوصله پیدا کړي چې په دې تو ګه دمسلمانانو د ملي او شرعي وجود ساتنه وکړي، سرچپه به لګیاوي کوم څوک چې په دې اړه کار کوي او خپلې شپې روڼوي، پرې نیوکې کوي او کارو ته یې دعبث کار په بڼه ګوري، هغه خبره رښتیاده چې وایي: په افغاني ټولنه کې چې هرڅومره ډېر کار کوي هومره به خلک او رقیبان درپسي ډېرې خبرې کوي او که لږ کار کوي نو لږې او که هیڅ هم نکوي هیڅوک به در پسي څه نه وایي، نن ورځ یوه ستونزه داپیښ ده چې په لوی شمیر ځوان دپردیو ژبود یادلو سره زیاته علاقمندي ښیي لکه دانګریـزې ژبې یادلو ته لوړ ته میلان مخ په ډېر یدودی، دانګریزې ژبې اهمیت پخپل ځای سهې دی، یادول یې یو مخ ناروا عمل ندی، ستم دادی چې انګریـزې لوستي ښاغلي دپښتواو فارسي په ویلو اولیکلو شرم احساسوي !حال داچې دازادو ولسونو نښه دانده دادغلامانه ذهنیت عکاسي ده، په نوره نړۍ کې خلک په پردیو ژبو غږېدل شرم ګڼي، هم هغه لوېدیځ چې داسلامي نړۍ دجدت پالو ته درښا منار ښکاري ،هلته هر ولس یواځې دخپلې ژبې په ویلو ویاړي اوپه بله غږیدونکو نه نفرت کوي، مشهور عـرب اومسلمان لیکوال او عالم علامه" شکیب ارسلان" (رحمه الله) دمسلمانانو دزوال په اسبابو او لاملونو کې دیته په اشاره لیکلي:

ملحدان دپخوانیو رسمونو او عقایدو په بیخ کنۍ او له منځه په وړلو لګیا دي، هغوئ هڅه کوي چې اسلام اومسلمانانو ته له دې لارې نه زیانونه ورسوي، په ورته تو ګه متعصب او تنګ نظري خلک هم دهېڅ مصلحانه ګام اوخوځښت منلو ته تیار ندي، هغوئ ته دهرې نوې خبرې منل موجب کفر عمل بریښي او اسلام ته یې په زیان او تـاوان تعبیـروي، حقیقت دادی چې دادواړه ډلې داسلام او مسلمانانو په خیر ندي او دمسلمانانو په زوال کې دواړه مهم نقش لري، ملحدان اوماده



پرستان مسلمانان له غرب سره دومره نژدې اویوځایول غواړي، چې وروسته داتوپیر او تمیز ګران وي چې اوس په دوئ کې غربي کوم دی او مسلمان کوم ؟غربي تمدن او تهذیب کې د کیمیاوي مادې پشان داسي تحلیل شي، څو دغربیت پرته بل څه پاته نشي، حال داچې دفطرت قانون دادی چې هر ولس اوقوم باید خپل ملي اقدار او عقاید په ټینګه وساتي، لاړشئ! لوېدیځ کې هر ولس اوقوم په دې مصر دی چې هغه دې پخپل پخواني اصلیت پاته وي، انګریزان کوښښ کوي چې انګریزان پاته وي، فرانسویان غواړي یواځې فرانسویان وي، جرمن په جرمني قناعت لري،دهر ولس کوښښ دادی چې خپل ملي خصوصیات پرېنږدي، ددې ذهنیت په وجه نړۍ کې ډېرو وړو، وړو قومونو هم له ډېرو لویو قومونونه ازادي ترلاسه کړه اوپه همدې هغوئ ژوندي پاته دي.

له لیکوال او سیاسي تحلیلګر ښاغلي

# خبیراحمد مجاهد سره

## د روانو هڅو لپاره ځانګړې مرکه

**پوښتنه :**

ښاغلی مجاهد ! له هر څه وړاندې در ته هر کلی وایو ، تاسو شاهد یاست چې امریکایان او نور یرغلګر څواکونه له افغانستانه په تیښته دي ، تجربې ښیي چې اشغالګر ځواکونه همیشه هڅه کوي له تیښتې وروسته هم په پرې ایښي هیواد کې خپل نفوذ په یوه شکل وساتي ، دې ته به پام سره به د تښتیدونکو اشغالګرو معامله له افغانستان سره څه او څنګه وي ؟

**ځواب**

وروره ، هر څوک په دې خبره پوهیږي چې امریکایانو د تیرو ۱۳ کلونو په اوږدو کې هم په پوځي اوهم په نورو ډګرونو کې څومره یې چې په وس پوره وه خپله زور ازمایی اووحشت وکاراوه ، په زرګونو افغانان یې له تیغه تیر کړل او په لکونو یې شکنجه کړل ،همدارنګه دوی په دغه جګړه کې نیږدې ۷ سوه ملیارده ډالرو لګول ، دافغانستان د تجزیی دسیسې یې په کارواچولې ، دډالرواونورو شیطاني امتیازاتو په بدل کې یې افغانان وهڅول چې له دین،غیرت اوافغاني فرهنګ څخه مخ واړوي ، خوبیاهم ناکام اوشرمنده وګرځیدل،ماته خو داسې کوم فشار او جبر نه تر سترګو کیږي چې امریکایانوهغه پرې ایښي وي اویاترې هیر شوي وي ، بلکې هریوبې دلته تمرین کړ ، ولې نتیجه یې برعکس اومنفي وه .

تاسي وګورئ امریکایان په هغې اردو هم دیوې لحظي لپاره باور نلري چې ملیاردونه ډالریې پرې ولګول اوخاص دهمدې لپاره یې وروزله چې څنګه دامریکایی ګټو اومنافعو لپاره جګړه وکړي اوافغانان ووژني اودجنګ لمبې بلې وساتي ، خواوس امریکایان حتی دیته ندي تیارچې خپل هغه خپل فرسوده اواستعمال شوي پوځي تجهیزات هم ور کړي،زماپه اند امریکایان اوس صرف داربکیانو ناولي پروژه ترمخ لري چې که امریکایان ووځي نودوی به له افغانانو سره جنګ کوي ، خو هغه هم الله تعالی دافغان ولس په همت د۲۰۱۴ کال له اختتام وړاندې رسوااوله شکست سره مخ کړل اوهرځای مجاهدین په بریالي ډول لګیادي دملت په مرسته اودمخوروپه همکاری داربکیانوجرړې له بیخه وباسي ، نوزه فکر کوم چې امریکانو په دې هیواد کې بشپړ مایوسه شوي او حوصله یې بایللې ده که امریکایان وځي په افغانستان کې کومه داسې بنیادي سرمایه ګزاری نه لیدل کیږي چې دوی به پر ې شخوندووهي اودهغو دګټو لپاره به بنسټیز رول ولوبوي ، ځکه امریکایانو له خپلوهغو اجیرانو سره هم کومه وفاداري تر سره نکړه چې هغوی له دین ،ایمان ،غیرت اودهیواد له لوړوګټو هم ور ته تیر شول .

يوه خبره چې ډيره مهمه ده داده چې امريکايانو داسې تبليغ کړی وو چې په افغانستان کې ددوی په مقابل کې تنها په جنوب کې مقاومت روان دی، خو داسلامي امارت پراخي جهادي ستراتيژی دغه زهرجن تبليغات هغه وخت شنډ اوبې بنياده وګرځول چې دجهاداوقربانی لړی له څو کلونوراهيسي په ټول هيواد کې که هغه جنوب دی که شمال په شدت اوګډه هم اهنګې پرمخ روانه وساتل شوه، په دې معنا چې اوس تنها په هلمند، کونړ اوپکتيا کې اشغالګر اوددوی په مزدورانو بريدونه نکيږي، بلکې په بدخشان، مزار، فارياب اونورو سيمو کې هم دښمن درانه زيانونه ويني او ترينه کډه په شابريښي.

## پوښتنه

داډيره موده په رسنيو کې د مسؤليتونو دانتقال په اړه تبليغات کيدل، دغه راز د کابل چارواکو هم له څه مودې راهيسې داسې اکټونه پيل کړي، چې غواړي ځانونه خپلواک او له سپيني ماڼۍ سره په تقابل کې وښيي، ستاسو په باور آيا دارګ واکمن په خپلو پريکړو کې خپلواک دي؟

## ځواب

امريکايان له تيرو۲ کلونوراهيسي هلې ځلې پيل کړي چې په افغانستان کې په خپلوټولوناکاميواوفجايعوباندې پرده واچوي اوځان ولس ته په اصطلاح سپين باز اوغيرمسؤل وښيي، اوټوله پړه په خپلو اجيرانووروغورځوي چې دادوی وو چې سم مديريت يې ونشو کړای، دافغان ولس ملاتړ يې ترلاسه نکړ اويايي دافغانستان دبنيادي بيارغوني په برخه کې له خارجي مرستو څخه مناسبه ګټه پورته نکړه، همدا ډول امريکايان په دې لټه کې دي چې د کابل دارګ واکمن له صحني وباسي اوپرځای يې نور امريکايي اجيران رامخې ته کړي اوافغانانو اونړی ته ديو تحول اوبدلون فکرور تبليغ کړي، خوله بل لوري بيادارګ اوسني واکمن هم په دې خبره پوه دی چې نوريې کډه په شاده اودامريکايانو په درد نه خوری، هغوی هم دخپلوورستيوشپو اوورځوپه درشل کې (ستاپه خبره څه اکټونه شروع کړي)، داستقلال اوخپلواکی شعارونه ور کوي اود افغان ولس په حق کې دخواخوږي يوځو توري وايي؛ زماپه فکر دامريکااودارګ دواکمنو دغه ټول حرکات مصنوعي بڼه لري، دافغان ولس په حق کې يې دښمني اوکرکه هماغسي موجوده ده، دواړه جهتونو په ګډه تفاهم دافغان ولس په زخمونومالګي دوروي، دتيرو۱۳ کلونوپه اوږدو کې چې څومره جفاوي اوغداری دافغانوپه حق کې ترسره شوي امريکااوګوډاګيان يې ټول سره شريک دی افغانان بايد دغو مسايلو ته سطحي ونه ګوري بلکې دامريکااودارګ داجيرانو دتيرو۱۳ کلونو جنايتونه اوجفاوي يوه يوه په يادا وذهن کې ولري.

همدا اوس چې دارګ ميشتو مياشتنۍ تنخوااو جيب خرڅ دامريکا لخوا ور کول کيږي، نو څرنګه به دوی خپلواک وبلل شي، زما په فکر امريکايان غواړي د شوروياتو تجربه تکرار کړي هغوی هم کله چې دتيښتې اراده وکړه نو خپل ګوډاګي ډاکټر نجيب ته يې واک وسپاره او وروسته په داسې حال چې دهغه مرسته او ملاتړ يې کاوو، ظاهرا يې داسې ښودله چې هغه خپلواک وښيي ترڅو يې په افغانانو ومني، اوس هم امريکايانو هماغه لوبه پيل کړې مګر افغانان چې دامريکا اجيران پيژني شايد په داسې تزويرونو ونه غوليږي.

## پوښتنه

ستاسوپه نظر په افغانستان کې د انتخاباتو پروسه به تر کومې کچې يوه واقعي او رښتيني پروسه وي، آيا دا انتخابات به په خپلواکه توګه ترسره شي او که به د سپيني ماڼۍ د ګټو لپاره استعمال شي؟

## ځواب

تاسې وګوری چې دغو جعلي انتخاباتو ته څه ډول ځيرې غوره شوي، هغوی چاتمويل کړل اود کمپاين چلولولګښتونه څوک ور کوي اوبياڅوک دچاپلپاره له خپلې کانديدی څخه لاس په سر کيږي، بهرحال.

مهمه خبره داده لکه څه ډول چې دافغانستان اسلامي امارت په ورستی اعلامیی کې هم ور ته اشاره شوي ، چې ټاکني وار له مخه په سپینه ماڼی اویادامریکادملي امنیت په ودانیو کې ترسره شوي چې دکرزي بدیل به څوک وي اوکوم نوعه کاري ټیم به ورسره کار کوي، په افغانستان کې دغه کمپاینونه ټول نمایشي دي ، دامریکاددفاع دمخکیني وزیر( رابرت گیټس) په خپل تازه چاپ کړي کتاب کې ور ته په ښکاره ډول اشاره کړي چې په ۲۰۰۹ کال کې چې کوم انتخابات ترسره شول دنړۍ په سطحه کثیف اوله دوکو ډک وو، تردې چې سم په نیمه درایوصندوقونه له جعلي اوتقلبي رایوډک شوي وو ، دهغه په وینا داکار داسې نه وچې امریکایان ور ته متوجه نه وو، بلکې دوی داهرڅه لیدل اوبیامو ددې لپاره تحمل کړل چې هسې دانتخاباتوپروسه تریوځایه ورسیږي ، اونړۍ ته ثابته کړو چې مونږ یودیپلوماتیک عمل که څه هم شفاف نه وو ترسره کړ.

نوچې په ۲۰۰۹ کال ټاکنې چې په سلوکې کې اتیافیصده جعلي اوتقلبي وي اوامریکایانو دخپلو خاصو گټولپاره ترسره اونتایج یې ومنل ، اوس خو ۲۰۱۴ کال دی ، دکابل اداري دفساداودرغلی خبرو ټوله نړۍ په سراخیستي اوله بل لوري ، دمجاهدینو دقوت اندازه خو هم هرچا ته ظاهره ده چې دکابل ارگ اونوري حساسي سیمي هم ترینه خوندي ندي ، نوپوښتنه داده چې په دغسي یوحالت کې به څه ډول ټاکني کیږي ، ساحه به یې چیرته وي ، امنیت به یې څنگه وي اودتقلب اوجعل کچه به یې د۲۰۰۹ کال په پرتله څومره اوچته وي اوپه نتیجه کې به یې څه ډول کثیفي اوحلقه بگوشي څیري منځته راځي ، هرڅوک پوهیږي چې دایوه دروغجنه او تیرایستونکي پروسه ده چې امریکایان غواړي له تیښتي وروسته داسې حکومت په واک پریږدي چې ددوی کردار وپالي.

## پوښتنه

اسلامي امارت دیوې اعلامیې په خپرولو سره له ولس څخه غوښتنه کړې ترڅو په ټاکنو کې شرکت ونه کړي دغه رازیې دټاکنو کار کوونکو ته گواښ کړی چې تربرید لاندې به یې ونیسي ، تاسو د چارو دیوه څارونکي په حیث داسلامي امارت دغه موقف څرنگه ارزوئ ؟

## ځواب

مادغه اعلامیه ولوستله ، ډیرمهم اوجامع ټکي پکې موجودوو، اسلامي امارت په منطقي ډول دانتخاباتو ضررونوپه گوته کړي ، انتخابات یې د کفارو یوه دسیسه بللې او دهغوی اتباع یې یو ناروا عمل بللی ددښمن دسیسواودټاکنوغیرعملي بڼه ته یې په واضح ډول اشارې کړي ، اوامریکایي حلقي هم اعتراف کوي چې راروانې ټاکني به له تیروهغو زیاتې له تقلب څخه ډکې وي ، نوچې یوځل ټاکني دغسې ناولتیاوي اوکثافتونه ولري اودعدل طمعه اوامیدهم تري قطع وي اوله بل لوري امریکایان گام په گام دټاکنونگراني هم کوي اوتوپ اوطیاري یې په سر گرځي ، نوپه دغسي ټاکنوکې برخه اخیستل پرته لدې چې له امریکایانو سره مستقیمه همکاري وبلل شي اویوه اسلام دښمنه پروژې ته خدمت وشي، بل څه تعبیریدلای شي ؟اوبل مونږ الهي اوقراني امرپه مخ کې لروچې مسلمانان به کفاروته میلان نکوي ، زماپه فکر په انتخاباتوکې برخه اخیستل هم کفر ته دمیلان معناورکوي اوهم له کفرسره مرسته اوتعاون اوله دې سره خامخا دین ته نقصان پښیږي نوبایدمخه تري واړول شي اومخالفت یې وشي .

## پوښتنه

ټاکني داسې مهال ترسره کیږي چې په همدې مهال دهواله توديدو سره دمجاهدینو بریدونه هم زور نیسي ، دمجاهدینو د ځمکنی سلطې وسعت ته په پام سره آیا داامکان شته چې دافغانستان په ټولو برخو کې ټاکنې ترسره شي ؟

## ځواب :

وروره ، زه به دخپلې کلي حالت درته ووایم ، مونږ دولایت له مرکز سره په ۸ کلومتري کې واقع یو، اوکلی مو تقریبا

۴زره کورونه لري، تیرځل چې دولسمشرى ټاکنې ترسره کیدلی، دوه ورځې مخکې کمپاین چلونکو، دکلي خلک په پټه اودډالروپه زور دولایت مرکز ته په موټرونو کې وړي وو اوپه کومې دولتي ودانی کې یې ترې رایې اخیستې وې چې باوروکړئ دهغوخلکو شمیر ټول ځلوروسووته هم نه رسیده، یعني ۴زره کوره وګوره او۴سوه رایی وګوره، په دې ماناچې نه زمونږ په کلي کې چې دیوې ولسوالی حیثیت لري کوم صندوق چاراوړل شو اونه هم دغې لویی شمیري اود ګڼ نفوسولرونکي سیمې خلکو پکې شرکت وکړ، نو تاسې ځپله قضاوت وکړی چې په ۲۰۱۴ کال به دغه انډول څنګه وي، ځکه مجاهدین خو دالله په فضل د۲۰۰۹ کال په پرتله څوبرابره زیات واکمن اوله ولسي محبوبیت څخه برخمن دی، مجاهدین زیاتې برخې په ولکه کې لري دغه رازیې دحکومت ترقبضه لاندې سیمو باندې هم اغیز پروت دی.

## پوښتنه

په پای کې دافغانستان دچارو دیوه تحلیګر په حیث کـه دافغانستان خلکو یانړیوالو ته څه خبره لرئ هیله ده راسره شریکه یې کړئ!

## ځواب

نړیوال اشغالګر چې افغانستان ته راغلي او دلته غواړي دخپلو ګټو د تضمین لپاره دانتخاباتي ډرامې غوندې د جبر او تزویر پروسې عملي کړي باید په دې پوه شي، چې دعملي اشغال په مهال او دزرګونو قواوو په شتون کې یې چې خپل شوم اهداف ترلاسه نه کړل په دغسې جعلي پروسو به یې هیڅکله ترلاسه نه کړای شي.

په افغانستان کې اضافه بوختیا دوی ته له زیان او رسوایي پرته شاید بله نتیجه ونلري، کومې ځیرې چې دلته وربانديې دوی حساب کوي او غواړي نصب یې کړي په اولس کې ریښه او ملاتړ نه لري، نوځکه باید دپوځي اشغال دپای ته رسولو غوندې نامرئي سیاسي اشغال او بې ځایه مداخلې هم پای ته ورسوي.

افغان اولس لکه څرنګه چې په وضعیت پوه دی، باید متوجه وي، چې انتخابات یوه امریکایي ډرامه ده چې درسنیو په زور غواړي په خلکو یې ومني، داشغال په صورت کې انتخابات هیڅ معنی نلري، په داسې حال کې چې دکابل چارواکي له تمویلي اړخه تر امریکا پورې تړلي او حتی زیاتره یې غربي تابعیتونه لري، څرنګه به دخپلواک حاکمیت طمعه ترې وشي.




هیوادوال باید پوه وي چې غربي اشغالګر او ملګري یې ظالمان دي چې دافغانانو حقه حقوق یې غصب کړي دي، که چیرې څوک له دوی سره دشیطاني پروسو په تعمیل کې مرسته او شرکت کوي نو بې له شکه به دهغوی په ګناهونو ورګډیږي او په دې توګه به یې داخرت بار درنیږي.

دحل یوازینی لاره داده چې له خپل اسلامي هیواد څخه په بشپړه توګه دکفري یرغل لمنه ټوله کړو ترڅو افغانانو ته دیوه رښتیني اسلامي نظام دجوړولو زمینه برابره شي.

دعوت وارشاد او جلب وجذب کمېسیون چې د اسلامي امارت د تشکیلاتو یوه برخه او مهمه څانګه ده خپله مستقله لایحه لري چې د اداري تشکیلاتو ترتیب، طرز العمل او مقاصد پکې درج دي د هېواد د ولایتونو، ولسوالیو او له هېواد څخه بهر د مهاجر مېشتو کمپونو په کچه پراخ تشکیلات په کار پوه، بااحساسه او وړ شخصیتونه پکې توظیف دي، کوم کارونه چې ورته حواله دي هغه په نوموړې لایحه کې تفصیلا ذکر دي د کمسیون منسوبین مکلف دي چې خپلې ټولې چارې د ترتیب شوې لایحې له مخې په منظمه توګه پر مخ بوځي د تېرو کلونو له کاري ګذارشاتو څخه دا جوتېږي چې د دعوت وارشاد منسوبینو الحمد لله خپلې ورسپارل شوې دندې په اخلاص او ښه احساس تر سره کړې چې د تېر یو کال د پام وړ فعالیتونو لنډیز یې په لاندې ډول دی:

# ددعوت و ارشاد کمیسیون په ۲۰۱۳ز کال ګې لاسته راوړنې

❁ **مجاهدینو او ولایتي چارواکو ته اصلاحي تربیتي پروګرامونو ترتیب.**

د اوړي په مهال د دعوت وارشاد ولایتي رئیسان د باکفایته وفد په شکل کې د خپل مربوطه ولایت په تقریبا ټولو ولسوالیو وګرځېدل د اسلامي امارت له نظامي او ملکي چارواکو، له باتورو مجاهدینو او اتلو طالبانو سره یې له نژدې لیدنې کتنې وکړې هغه پانې چې د اسلامي امارت دسپېڅلو مقاصدو، روښانه تګلارې او لازمه هدایاتو یادونه پکې شوې وه پر هغوی وویشلې، مجاهدینو ته یې پخپل منځ کې د ایثار، ښه نظم او له ولس سره د ښه چلند سپارښتنې وکړې، د جلب وجذب اهمیت، ګټې، طریقې او په دې هکله یې د اړونده مسئولیتونو یادونه ورته وکړه او تسلیم شویو اشخاصو سره پر شویو تعهداتو د وفا او د هغوی د سرونو او مالونو د تحفظ په هکله یې ټینګار وکړ.

همدا راز د دعوت وارشاد په بلنه او هلو ځلو د ژمي په موسم کې د مرکزي نظامي کمیسیون او ولایاتو د محترمو والیانو په مرسته یوه ورځني تربیوي او اصلاحي سیمینارونه جوړ شول چې د هېواد د جیدو شیوخو او علماوو په توسط شپاړلس اړینې او ګټورې موضوع ګانې بیان شوې ټولو مسئولینو او د سیمینار ګډونوالو ته سپارښتنه وشوه چې زموږ ټولو رښتینی کامیابي د بیان شویو خبرو له عملی کولو سره تړاو لري پخپله به هم وربانديې عمل کوو او خپلو مربوطه ملګرو ته به هم په دې باندې د عمل بلنه ورکوو چې په همدې منظور د یادابنت په توګه د علماء کرامو د موعظو لنډیز وربانديې ووېشل شو.

## ۞ علماء کرام او په ځانګړي توګه نوي فارغان خپلو اساسي دندو ته متوجه کول

د دیني مدارسو د تعلیمي کال د اختتام په مهال د دعوت وارشاد او جلب وجذب د مرکزي کمیسیون له لوري د ټولو هغو مدارسو له پاره چې فارغان یې درلودل د علماء کرامو وفدونه ترتیب او وټاکل شول، مؤظفو وفدونو له فارغانو سره له نژدې لیدنه کتنه وکړه هغوی یې په ځانګړي توګه دوو خبرو ته ځیر کړل یو دا چې د دښمن ځینو مرموز پروګرامونو ته باید په جدي توګه متوجه وي تر څو خدای مکړه د عمل په ډګر کې ښخ او د دښمن له لوري یې سپینه جامه داغداره نشي او بل دا چې تر فراغت وروسته د ایمان او علمیت په مقتضا کوم مسئولیتونه ورته راجع دي او مسلمان ملت ورڅخه د څه طمع او امید لري .

## ۞ ولسي خلکو او مسلمان ملت کې جهادي جذبه برحال ساتل

د دعوت وارشاد مسئولینو د خپلې لایحې له مخې سږ کال هم د خپلو مربوطه ولایاتو په سیمو کې تر ممکنه بریده له خپلو هېواد والو او عامو ولسي وګړو سره په پراخه پیمانه ناستې پاستې کړي دي د هېواد پر روانو حالاتو یې تفصیلی خبرې اترې ورسره کړي او د خپلو موعظو په ترڅ کې یې د جهاد د اهمیت، اړتیا او ګټو په باب هر اړخیزه او ارزښتناکې بیانونه کړي دي د جمعې، اختر او په نورو محافلو کې یې هېواد وال جهاد او اسلامی امارت سره مرستې ته هڅولي دي.

## ۞ د اسلامي امارت د فرامینو، لوایحو او پالیسیو څخه څارنه او خلک خبرول

د دعوت وارشاد کارکنانو هغه پاڼې چې د اختر په مناسبت د عالي قدر امیر المومنین په ارزښتناکه وینا مشتملې او د اسلامي امارت د فرهنګي کمېسیون له لوري چاپ شوې وي او یا هم په عامو احوالو کې دعوت وارشاد ترتیب کړې دي د خپلو مربوطه علاقو مجاهدینو، طالبانو د مکاتبو شاګردانو علماء کرامو او عامو خلکو ته ورسولې او ورته یې تشریح کړې او همدا ډول یې خلکو سره د خپلو مجالسو په ترڅ کې هغوی ته د ډاډ په لړ کې څرګنده کړې چې د امارت کارکنان په مجموع کې د خپل مشرتابه فرامینو او ترتیب شویو لایحو ته ژمن دي او هم یې پخپل نوبت امارتي کارکنانو سره د لایحو د عملي کېدو اهمیت او ګټې بیان کړي دي.

## ۞ له عامو خلکو څخه د جهاد او اسلامي امارت د کړنو په باب مشورې، انتقادونه او نظریات را جمع کول

د دعوت وارشاد مؤظفینو د مشرتابه له هدایاتو سره سم له علماوو، استادانو، قومي مشرانو، متدینو قومانداانو او عامو خلکو څخه د مجالسو په مهال د

هغوی انتقادونه اوریدلي هغه انتقادونه چې پر حقیقت بنا نه وه معقول ځوابونه ویلي او د هغوی قناعت یې تر لاسه کړی او کوم اعتراضونه چې تعمیري بڼه یې درلودلې له نورو مشورو او سالمو نظریاتو سره یو ځای ځان سره نوټ کړي، او عند الموقع یې له اړونده مقاماتو سره شریک کړي دي.

**د یرغلګرو له دسیسو او مکرونو څخه خلک خبرول او د مخنیوي په خاطر یې جدي اقدامات تر سره کول**

کله چې یرغلګرو پخپله او یا هم د اجیر حکومت په توسط د عوامو د غولولو په خاطر کومه دسیسه په کار اچولې د دعوت وارشاد کمېسیون د هغه د شنډولو په خاطر بر وقت بیړنی اقدامات ترسره کړي او د اسلامي امارت د مشرتابه له هدایاتو سره سم یې د خلکو د خبرولو او د دسیسې د خنثی کولو هڅه کړې دی د بېلګې په توګه د ۲۰۱۳ کال د جدي په میاشت کېچې کله حامد کرزي اعلان وکړ چې په کابل کې به د علماوو یوه ستره غونډه جوړوي د استشهادي عملیاتو او نورو جهادي فعالیتونو د حرمت فتوا به ورڅخه اخلي نو د دعوت وارشاد کمېسیون د خپل مشرتابه له هدایاتو سره سم د هېواد له مخورو علماوو سره خبره شریکه کړه چې هېڅوک باید د هغوی په دې جرګه کې چې له جعل وتزویر څخه ډکه او تاریخي شرموونکی منفي پایلي لرونکې ګډون ونکړي نه په اګاهانه ډول او نه هم په غیرااګاهانه ډول، همدا راز یې د علماوو او مشایخو تاریخي غونډه راوبلله چې سوونو جیدو علماوو په دې هکله قطعه نامه صادر کړه د هغوی نوموړې غونډه یې تحریم اعلان کړه او د یرغلګرو او د هغوی د لاسپوڅو په خلاف یې د جهاد فتوا بیا تازه کړه.

او همدا راز له ټولو هغو غیر ملکی علماوو او مذهبي مشرانو سره ناسته او یا لا اقل تماسونه ونیول شول چې د کرزی له لوري ورته په دې غونډه کې د شرکت بلنه ورکړې وه او یا ورکول کېده هماغه وه چې د الله تعالی په فضل کرزی او ملګري یې ونه توانېدل چې په ټاکلي نېټه نوموړې غونډه جوړه کړي بلکې پخپلې دې بې وسی یې اعتراف هم وکړ چې دې سره د هغوی ملي او مذهبي لازیاته انزوا او یتیم توب جوت شو

**په کمپونو او مهاجر مېشتو سیمو کې فعالیتونه**

دعوت وارشاد د مهاجرینو په کمپونو کې هم خپل نماینده ګان لري د هغوی لپاره علیحده طرز العمل ترتیب شوی چې د هغې له مخې هغوی خپل فعالیتونه پرمخ بیایي: د مثال په توګه خلکو ته د اسلامي امارت اهداف بیانولد اسلامي امارت اړوندپیغامونه ،اعلامیې ، هدایات او د مختلفو مسائلو په اړه وضاحتونه ترعوامو رسول او د اسلامي امارت د پالیسیو په اړه د خلکو افکار تنویرول، علماء کرامو ، جهادي مسلح قومندانانو او قومي مشرانو سره په جلا جلا ډول مشوره کول، او په اعتماد کې اخیستل ، علماء ، پخواني مسلح جهادي قو مندانان او د قوم مشران دېته متوجه کول چې د خپلو کشرانو اذهان د دین ، اسلام او د هېواد د استقلال په حمایت باندې تربیه او جوړ کړي چې د افغانانو کوم مشکل وي او حل یې د امارت تر توان لاندي وي دامارت مسؤولینو ته یې رسول تر څو د امارت لخوا تر وسه د مهاجرو ورونو سره همکا ري وکړل سي .

علماء کرام دې ته متوجه کول چې په خپلو درسونو او خطبو کې دنورو موضوعاتو تر څنګ د اخلاقو، له علماؤ، مشرانو او ملګرو سره دښه برخورد او د

امیرانو داطاعت، د قوم پرستي او ظلم مذمت هم په موثر انداز بیان کړي

د مختلفو غونډو او جلسو څخه د اسلامي امارت په نفعه استفاده کول او له دې لارې د جهاد او اسلامي نظام داعیه تبلیغول او د دښمن د تبلیغاتو مخه نیول

د کابل ګوډاګی اداري لخوا که په کمپونو کې کوم ناوړه پلان او دسیسې په کار اچول کیږي د نماینده او د کمپ دعلماؤ او بارسوخه مشرانو له لوري په ګډه مخه نیول او د ضرورت وخت کې د کمیسون دمشر تابه څخه همکاري غوښتل او داسې نور.....

چې الحمد لله په دې موادو تر ډېره حده عمل شوی او دا طریقه ښه د پرمختګ په حال کې دی چې موږ یې د مثبتو نتایجو شاهدان یو.

### ❁ د یرغلګرو له چوپړ او دکابل له اجیرې اداري څخه د غولېدلو هېوادوالو را جلا کول

د شمال ختیځ د زون په شلو ولایاتو کې په ۲۰۱۳ کال کې په لاندې تعداد اشخاص له ګوډاګی اداري او د امریکا له چوپړ څخه را جلا شوي دي او کوم چې د خپلو اسلحو په راوړلو توانیدلي نو خپلې وسایل هم له ځان سره راوړي دي:

ټول تسلیم شوي اشخاص: (۲۸۷۴)

ټوله راوړل شوي مختلف النوع وسله: (۵۲۲)

موټرسائکلان: (۷)

مخابرې: (۴)

ټانګ: (۱)

کرولاموټر: (۱)

### ❁ د هېواد په سطحه د لویو سیاسي، اجتماعي او ملی مسئلو په هکله مدلل او شرعي فتوا جاري کول

د اسلامي امارت له لوري د هېواد په سطحه د لویو سیاسي، ټولنیزو او ملي مسائلو د حل په منظور د دعوت وارشاد په چوکاټ کې دار الافتاء تاسیس شوې چې په ټاکلیو غړیو مشتمله ده د ملت اړینو مسائلو ته د حل لار لټوي او دمجاهدینو دمسائلو حل ته دلومړیتوب حق ورکوي.

دار الافتاء ته ټول مسائل د دعوت، ارشاد، جلب ،او جذب د کمیسیون د اداري شعبې لخوا سپارل کیږي، او له همدې لارې له حل کیدو وروسته بیرته تر لاسه کیږي.

دار الافتاء کوښښ کوي چې په لنډه موده کې مسائل د قران مجید، اوسنت نبوی صلی الله علیه وسلم، او حنفي فقهې په رڼا کې حل کړي، مسئله به د مفتیانو له اتفاق اوفیصلې وروسته د دارالافتاء د مشر تر کتنې وروسته مهر شوې او امضاء شده اړونده تن او یا مرجع ته سپارل کیږي.

نوموړې دار الافتاء مدلل شرعي دریځ لري په دې برخه کې تر وسه وسه دسترو علماء کرامو او افتایې مراکزو نظر متحداو حمایت حاصل کړی دی غړي یې د خپل علمي وړتیا او سپیڅلي احساس له مخې هڅه کوي ترڅو ولس اوجهادي صفوف دشکونو او شبهاتو په کندو کې ونه لویږي.

نوموړې دار الافتاء سره له دې چې جدید التاسیس دی او شرایط تر ډېره حده برابر نه دي بیا ځینې مهمې او د پام وړ فتواوې صادرې کړي دي.

# دکاناډايي يرغلګرو تېښته

۱۲/ ۳/ ۲۰۱۴ ميلادي دکاناډا د تيښتې ورځ

قاري حبيب

د روان ميلادي کال دمارچ په ۱۲نېټه دافغانستان په پلازمينه کې کابل کې د بهرنيو يرغلګرو ځواکونو په مرکزي قرارګاه کې ستر مراسم راغوښتل شوي وو ، په مراسمو کې دير غلګرو قواوو عمومي قومندان جنرال جوزف ډنفورډ او ګڼ شمير نورو داخلي او بهرنيو لوړپوړو چارواکو ګډون کړی وو ، مراسم ددې لپاره رابلل شوي وو ترڅو په افغانستان کې د کاناډايي ځواکونو دشتون وروستۍ ورځ ولمانځل شي ، په همدې اړوند له خبرو وروسته د پوځي سرود په بدرګه د کاناډا بيرغ د ځوتنو پوځيانو لخوا رسما دافغانستان له اسمان څخه راکوز کړای شو ، چې په دې ډول دامريکا دنورو لندمهالو اشرباڼو په څير د يرغل مهم لوبغاړي هيواد کاناډا هم رسما په افغانستان کې خپل شکست ومانه او د تيښتې لوری يې خپل کړ .

په هغو انځورونو کې چې له همدې مراسمو څخه رسنيو خپاره کړي دي ، کاناډايي پوځيان چې خپل بيرغ راښکته کوي خورا ، غمجن ، ځړيدلي او پښيمانه معلوميږي ، چې په افغانستان کې ددې هيواد د ۱۲ کلنې بوختيا ښه انځور ګري کوي .

کاناډا د ۲۰۱۴م کال په مارچ کې له افغانستان پښې سپکوي ، مارچ هغه مياشت ده چې پوره ۱۲ کاله وړاندې يعنې په ۲۰۰۲م کال کې په همدې مياشت کې کاناډايي ځواکونو په افغانستان کې په لومړنيو جنګي عملياتو کې برخه واخيسته دا جګړه د پکتيا په غرونو کې د ښامار عمليات وو چې دامريکايي او نورو يرغلګرو ترڅنګ په لومړي ځل زرګونه کاناډايي عسکر له افغانانو سره په جګړه کې ښکيل شول .

## کاناډايي پوځ په افغانستان کې

کاناډا د شمالي امريکا يو پراخ هيواد دی ، چې پخوا دبريتانيې مستعمره وو او اوس دبرتانيې دنورو مستعمراتو غونډې دهمګټو هيوادونو غړيتوب لري ، دا هيواد چې دامريکا سره ژوري

اړيکي او دناټو ترون غړيتوب لري د ټول برحال پوځ شمير يې ۶۴ زره تنه دی.

کله چې د سبتمبر د يوولسمې له پيښې وروسته امريکايي ولسمشر جورج بوش په افغانستان دبريد اراده وکړه او – له مور سره شئ يا زمور له دښمنانو سره – شعار يې پورته کړ، کاناډا هم يو له هغو هيوادونو څخه وو چې يوازې دامريکا درضايت په خاطر يې دافغانستان په جګړه کې شرکت وکړ، دامريکايي عسکرو له راتلو سره کاناډا هم يو شمير سرتيري افغانستان ته راوستل، چې وروسته يې شمير په تدريج سره زياتيده.

د ۲۰۰۲ ميلادي کال په مارچ کې په پکتيا کې د اناکونډا عمليات لومړني عمليات وو چې کاناډايي پوځيانو په کې شرکت وکړ، د ۲۰۰۳م کال په اګست کې په افغانستان کې د کاناډا ځواکونو له زياتيدلو وروسته د کابل په ځينو سيمو کې امنيتي مسؤليت ور ته وسپارل شو دغه راز په همدې مياشت کې په کابل کې د کانادا سفارت پرانيستل شو چې دامنيت مسؤليت يې کاناډايي عسکرو په غاړه واخيست، تر دې وروسته کاناډايي ځواکونه کندهار ته لاړل تر څو يې د ۲۰۰۵ ميلادي کال په اګست کې دآيساف د تقسيم له مخې ددې ولايت داشغال ټول مسؤليت په غاړه واخيست.

کاناډايي ځواکونه چې کندهار کې ميشت شول ور سره سم ورباندې بريدونه هم پيل شول او ګڼ سرتيري يې په کې له لاسه ورکړل، د ۲۰۰۶م کال په لومړيو کې کاناډايانو په کندهار کې لومړني ستر عمليات پيل کړل چې ۲۰۰۰ کاناډايي عسکرو په کې ګډون درلود، دا جګړه نړيوالو مطبوعاتو د پنجوايي جګړې په نامه ياده کړه، چې کاناډايي ځواکونو ته په کې درانه تلفات واوښتل.

له همدې جګړې سره د کندهار په مختلفو سيمو کې کاناډايي عسکر په سختو جګړو کې راښکيل شول، ګڼ زغروال وسايط او پوځيان يې دمجاهدينو په بريدونو کې له منځه لاړل تر دې چې د ۲۰۰۷م کال په اګست کې د کاناډا حکومت دخپل اولس د رضايت حاصلولو لپاره د کاناډا په پلازمينه کې ځيني سر کونه او واټونه دهغو پوځيانو په نومونو ونومول چې په افغانستان کې وژل شوي وو.

له ۲۰۰۶م کال راهيسې بيا تر ۲۰۱۱م کال پورې چې کاناډايي حکومت د ولسي اعتراضونو له امله دجنګي رول دپايته رسولو پريکړه وکړه، کاناډايان پر لپسې په کندهار ولايت کې په سختو جګړو کې ښکيل وو، په دوی باندې د کندهار ښار دننه او شاوخوا ولسواليو کې خورا درانه بريدونه ترسره شول، چې هر ځل ور ته سخت تلفات اوښتل.

په دې لړ کې د ۲۰۰۸م کال په جون کې دارغنداب جګړه، د ۲۰۰۹م کال په همدې مياشت کې د ډنډ او ژړۍ جګړې او د ۲۰۱۰م کال په سبتمبر کې په ډنډ، ژړۍ، پنجوايي، ميوند، ارغنداب او ځينو نورو سيمو کې دښامار قهر په نامه امريکايي / کاناډايي عمليات هغه سختې جګړې وې چې کاناډايي عسکر په کې ښکيل وو.

په دې جګړو کې که له يوې د کاناډا پوځ په لومړي ځل دافغان مجاهدينو له لاسه درانه ګوزارونه او تلفات وزغمل له بلې خوا د کاناډايي او امريکايي يرغلګرو دوحشت او بمبارونو په نتيجه کې دافغانستان ملکي وګړو او عامه شتمنيو ته سخت تلفات هم واوښتل.

په ۲۰۰۹م کال کې دارغنداب جګړه او ورپسې په ۲۰۱۰م کال کې د ښامار قهر عمليات هغه جګړې وې چې ښايي په افغانستان کې دير غلګرو قواوو تر ټولو بې رحمانه عمليات وبلل شي، ددې عملياتو په مهال کاناډايي او امريکايي عسکرو د کندهار د ميوند، پنجوايي، ارغنداب، ژړۍ او ډنډ ولسواليو ۸۰ فيصده باغونه، کښتونه، ځنګلونه او عامه تاسيسات له منځه يووړل، کورونه يې په بيلدوزرو ونړول، ونې يې په باروتو والوزولې او دځنګلونو دسوزولو او عامه تخريب لپاره يې دميکليک او هيمارس په نامه له تخريبي توغندويو او بمونو څخه استفاده وکړه، د کاناډايي او امريکايي پوځيانو دغه کړنې هغه جنګي جنايات دي

چې تراوسه پټ پاته یا پټ ساتل شوي دي او په نړیوالو مطبوعاتو کې یې به اړه ډیر لږ راپورونه راغلي دي.

دجګړې په ډګر کې په مظالمو سربیره دکاناډایي عسکرو بل جنایت دافغان بندیانو په وړاندې ناوړه چلند وو، د۲۰۰۹م کال په نومبر او د ۲۰۱۰م کال په مارچ کې یو شمیر کاناډایي رسنیو افشاء کړه چې دکاناډا استخباراتي اداره له افغان بندیانو څخه پلټنې او تحقیقات کوي چې مکرراً یې افغان بندیانو ته شکنجې ورکړي او ځورولي هم دي.

خو له دې ټولو جنګي جنایاتو، بمبارونو او وحشتونو سره سره کاناډایي عسکرو دامریکایي ملګرو غوندې په دې ونه توانیدل چې په افغانستان کې خپل ماموریت دبریا تر منزله ورسوي، دجګړو زیادت پرلپسې د دکاناډایانو تلفات او مالي مصارف زیاتول، چې په پایله کې یې دکاناډایي ولس نارضایت زیاتېده، په پای کې دکاناډا ولسمشر په دې مجبور شو چې دوروستي حل په توګه د۲۰۱۱م کال په جولای کې یې اعلان وکړ چې له دې وروسته کاناډایي پوځیان په افغانستان کې خپل جنګي ماموریت پای ته رسوي او کوښښ کوي چې هرڅو زر په بشپړه توګه له دې هیواده پښې سپکې کړي.

دادی دهماغه ورځې نه چې کاناډایانودجګړې له میدانه پښې سپکې کړې نږدې دری کاله وروسته ددغه هیواد یرغلګر عسکر په بشپړه توګه له افغانستان څخه ووتل، دوی دروان کال دمارچ په ۱۲ په کابل کې هغه بیرغ دشکست دشرم له منلو سره یوځای په خپله راکوز کړ چې ۱۲ کاله وړاندې یې دافغانستان په پاکه خاوره پورته کړی وو، په دې توګه کاناډایي پوځ دافغان مجاهدینو په لاس شکست وخوړ او دافغانستان دویاړمن تاریخ په صفحو کې دیوې بل یرغلګر دماتولو او دیوه بل مغرور لښکر دځغلولوویاړ هم ثبت شو.

کاناډا دافغانستان په جګړه کې څه ترلاسه کړل؟

د کاناډایي عسکرو دتیښتې په ورځ ددې هیواد چارواکو وویل چې دافغانستان په څوکلنه جګړه کې یې ۱۵۸ پوځیان وژل شوي او زرګونه نور ټپیان دي دغه راز په دې هیواد کې دکاناډا تابعیت لرونکي دوه مشاورین، یو لوړپوړی دیپلومات او یوه خبریال هم وژل شویدي، مګر بې پرې احصایې ښیي چې په افغانستان کې دکاناډایانو تلفات تر دې څو برابره زیات دي.

نظامي کتونکي په دې نظر دي چې کاناډایانو دڅو کلنو پوځي هڅو په نتیجه کې هیڅ داسې کومه ښکاره لاسته راوړنه نه ده درلودلې چې ددې هیواد سیاسیون وربانډې حساب وکړي، پرته له دې چې خپل ملیاردونه ډالر یې بې هدفه خرچ کړي او په سلهاوو پوځیان یې له لاسه ورکړي دي.

کاناډایان دافغانستان له جګړې څخه پوځیان په داسې حال کې باسي، چې یوشمیر نور کرلي جنجالونه یې لاهم ترلمن نیسي، داسې ویل کیږي چې دکندهار په بهرنیو پوځي قرارګاوو کې مصروف ملکي کار کوونکي په تیره ترجمانان زیاتره کناډایي تابعیت لري، او کاناډایانو دډیرو امتیازاتو او بیمې په بدل کې تر کندهاره راوستي، دغه راز دکندهار دوالی توریالي ویسا په شمول یوشمیر حکومتي چارواکي هم دکناډایي اعتبار په مټ تر دې ځایه رارسیدلي وه، اوس چې کاناډایان له افغانستانه وزي، همدا کسان هم ترې پالل غواړي، او باید ورسره کړې ژمنې عملي کړي.

دغه راز په افغانستان کې دکاناډا دپوځ ترنیمایي زیات قریب ۴۰ زره پوځیانو دنده اجراء کړې چې ددغوجنګیدلیو پوځیانو زیاتره یامعیوب شوي اویا هم په ذهني ناروغیو مبتلاء دي چې له دې اړخه هم کاناډا نه شي کولای تر ډیرې مودې دجګړې له اغیزو ځان خلاص او خوندي کړي.

لوړو حقایقو ته په پام سره ویلی شو چې کاناډایانو دافغانستان له جګړې څخه دشکست له شرم او درنو ځاني او مالي زیانونو پرته بل هیڅ هم نه دي ترلاسه کړي، له همدې امله خو له تښتیدلیو پوځیانو سره په خپل هیواد کې هم دقهرمانانو غوندې نه بلکې د شکست خوړلیو په شان چلند کیږي.

# د اصول فقه د علم تدوين

مفتي شاهد (حقاني)

ځلورمه برخه

دعلم فقه دتاريخي قدامت دپېژندلو اودخلفاء راشدينو (رضی الله عنهم) له وخته ترصغارو صحابو رضوان الله تعالی علیهم اجمعین پورې ،اوبيا دحجازاو عراق دفقهي مدرسو منځته راتلل اوډول ډول اطوار يامختلف پړاوونه يې دځه تفصيل سره په تير بحث کې وشنل شو، اوس به دعلم اصول فقه دتدوين او منځته راتلو په هکله څه وضاحت وکړو!

داصول فقه علم دکره معلوماتو له مخې په دوهمه هجري پیړۍ کې رامنځته شوی دی ،خوددې څخه بايد دا ونه فهمول شي ،چې ګونديې داجتهاد پر وخت مجتهدينو داصول فقه دقواعدو التزام ندی کړی ،بلکې په پوره وثوق سره ويلای شو،چې دصحابه کرامو مجتهدينو( رضی الله تعالی عنهم ) څخه راواخله بيا تر وروستيو امامانورح پورې ټولو داجتهاد پر وخت دقواعدو التزام کاوه، خو په دومره تفاوت چې تر دې وخته پورې ددې قواعدومنظم تدوين نه و شوی ،چې تفصيل به يې وروسته راشي .

ددې فن دتدوين په هکله دوه خبرې مشهورې دي ،چې يوه کې يې داصول فقه دخپلواک تدوين او مستقل تصنيف نسبت حضرت امام شافعي رح ته شوی ،اوبله کې ددې فن دتدوين او لومړني مستقل تصنيف نسبت دحنفي مذهب دوهم امام اوقاضی القضات حضرت امام ابويوسف رح ته شوی ، لکه په (التقرير والتخيير لمحمد الحنبلی /ج۱/ص۱۸۷)او همداسې په (تيسير الحرير لمحمد امين /ج۱/ص۴۸)کې داسې ليکل شوي چې ((وَيُقَالُ إِنَّ أَوَّلَ مَنْ دَوَّنَ فِي أُصُولِ الْفِقْهِ عَلَى سَبِيلِ الِاسْتِقْلَالِ الْإِمَامُ الشَّافِعِيُّ صَنَّفَ فِيهِ كِتَابَ الرِّسَالَةِ بِالْتِمَاسِ ابْنِ الْمَهْدِيِّ))يعنې ددې حوالې لمخې ويل کيږي ،چې لومړی تدوين چې دا ددې فن مستقلا او په خپلواکه بڼه کړی، هغه امام شافعي رح دی ،چې د(کتاب الرسالة بالتماس ابن المهدی )کتاب يې پکې لومړی ځل تصنيف او دتدوين چاره يې پيل شوه .

خو(ابن النديم) په (الفهرست) کې داسې ليکلي چې : وَذَهَبَ ابْنُ النَّدِيمِ فِي " الْفِهْرِسْتِ " أَنَّ أَوَّلَ مَنْ أَلَّفَ فِيهِ هُوَ أَبُو يُوسُفَ صَاحِبُ أَبِي حَنِيفَةَ))يعنې (ابن نديم) په(الفهرست) کې داسې چې ليکلي، چې اصول فقه کې لومړنی تاليف امام ابو يوسف رح کړی ،او دا به يې لومړی مدون شي ،خو داچې هر څه وي وي به،دواړه اهل مذهب دي ،قاضی القضات امام ابويوسف رح دحنفي مذهب دويم امام ،دعلم او فقاهت ديوه سمندر په حيث امت کې شهرت لري ، او

امام شافعي رح هم دفقاهت يوه روڼ ستوری او دشافعي فقه امام دی ، دواړه داهل سنت والجماعت پيژندل شوي امامان دي ، خودا خبره دهيرولو نه ده ،چې دعلم فقه څخه دعلم اصول فقه مستقل تدوين وروسته شوی او علم فقه پر علم اصول فقه تقدم او وړاندې والی لري ،ړومبی فقه تدوين شوي او بيا علم اصول فقه تدوين شوي ده ،ځکه لومړی هغه شخص چې علم فقه يې تدوين کړه او په کتابونواو بابونو کې يې تر تيب کړه، هغه امام الايمه حضرت امام ابو حنيفه رح و،دهمدې ځايه ده چې ، دحضرت امام صيب دفضيلت په اړه دامام شافعي رح هغه مقوله چې په (طبقات الفقهاء) کې (الفيروزآبادي الشافعي) رانقل کړي ، ډيره مشهوره ده ،چې يکې داحضرت فرمايي :((مَنْ أَرَادَ الْفِقْهَ فَهُوَ عِيَالٌ عَلَى أَبِي حَنِيفَةَ))يعني څوک چې دفقهې احکامو سره مينه او علاقه لري، نو په حقيقت کې دامام ابوحنيفه رح په عيال کې راځي او دابه دده دهڅو او جدو جهد پوروړی وي .

که هريو امام ددې علم مدون وي ،په نفس الامر کې دواړه داسلامي امت لوړې هستۍ دي او دواړه مقتدايان دي، خو هغه چې دې علم کې پرې وضاحت شوی ،هغه دادی چې دې علم اصول فقه کې داسې قواعد اوضوابط بيان شوي، چې بايد مجتهد يې دقرآن ،سنت او قياس څخه دشرعي احکامو داستنباط پر وخت التزام وکړي اوددې ضوابطو مراعاتول پرې واجب دي ، داسې گمان هم بې ځايه دی، چې داصول فقه له تدوين څخه مخکې گوندې اجتهاد په قواعدو مبتني او ملتزم نه و،ځکه دصحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم څخه راواخله ددې اصول فقه علم تر تدوين پورې ،ټولو مجتهدينو دثابتو قواعدو التزام داستنباط پر وخت کړی ،هو داخبره هم رښتيوني ده، چې په ځينو قواعدو کې به ديوه فقيه رايه له بل فقيه څخه خلاف وه ،خو په حقيقت کې ددوئ اختلاف دامکان تر بريده په تحری الصواب باندې بناء وه او ددې نه په غير بل څه نه و.

هو!

دا قواعد که څه هم ملتزم وو او داجتهاد پر وخت ترې مجتهدينو استفاده کوله ،خو لا هم تدوين شوي نه وو، دبيلگې په ډول په علم نحو کې چې داعلم او اصطلاحات علميه يې لا هم تدوين شوي نه وو،خو عربانو به دفاعل درفع اودمفعول دنصب التزام له مخکې څخه کاوه ،چې وروسته يې علمي تدوين وشو،نو ددې څخه په ډاگه شوه ،چې که څه هم اصول فقه او علم فقه دواړه من حيث الوجود ، متعاصرين او متلازمين دي ، مگر په دومره تفاوت چې دعلم اصول فقه تدوين دعلم فقه څخه متاخر او وروسته شوی دی .

په همدې زمانه کې فقه افتراضي يا فقه تقديري هم ظهور وکړ ،او دفقه دا رنگ دعراق په فقهي مدرسه کې دامام ابوحنيفه رح اوده داصحابوله ظهور څخه مخکې عظمت ته رسيدلی و،خو د دوئ په وخت کې پدې فن بوختيا او اشتغال کې زياتوالی راغی ،چې دعلم فقه دمسايلو دې افتراضي رنگ فقهاء دا مهال په دوو ډلو وويشل ،يوې ډلې دارنگ بد باله، او بلې ډلې يې ددې امله تاييد وکړ ،چې په آند يې مونږ بايد دپيښې دوقوع څخه مخکې ور ته شرعي حکم معلوم او متعين کړی وي ،چې کله پيښه وشي ،نو شرعي ځواب به يې راسره لا له مخکې موجود وي ، دادواړه رآيې په خپل خپل ځای کې وجاهت لري ،البته په دې فقهي رنگ کې داسې اسراف کول ،چې په هغو افتراضي مسايلو مصروفيت چې عادةً مستحيلة الوقوع وي ، ډير اشتغال به بنايي دځينو علماوو له نظره محمود نه وي ،خو په هغو مسايلو کې مصروفيت هيڅ باک نلري ،چې ممکنة الوقوع وي ،خو لا نه وي پيښ شوي ،ځکه مونږ دمتقدمينو علماوو په کتابونو کې ډير داسې مسايل وکتل ،چې هغه وخت مستحيلة الوقوع وو،خو اوس پيښ شول ،لکه دجنس انقلاب د ذکورت څخه انوثت ته ،يا له انوثت څخه ذکورت ته ،همداسې د (تلقيح صناعي) مسئلې غوندې نور داسې مسايل ،لکه ديوه مړه انسان دبدن اعضاء يا غړي بل ژوندې انسان ته ور کول ،يا ديوه ژوندې انسان دبدن غړي بل ژوندې انسان ته ور کول ....ځکه افتراضي فقه مونږ ته پدې ډول مسايلو کې داسې ډيرې بندې دروازې خلاصې کړي او مخکنيو کرامو فقهاوو رح راته مستقيمه لاره وښوده، الله جل جلاله دې پرې رحم وکړي

# داسلاميت او مغربيت ترمنځ کشمکش

## هندوستان کې دمغربيت...

ليکوال داسلامي نړۍ مفکر عالم مولانا سيد ابوالحسن علی ندوي رح ژباړه ابوظهير

**سر سيد احمد خان او دهغه اندونه:**

سرسيد احمد خان له فرانسې او انګلستانه هغه مهال ليده کاته وکړل چې دهغوئ تمدن يو ځوان اونوی تمدن وه، نوي علوم اونوي صنعتونه مخ پر عروج وو، په غربې ټولنه کې دزوال او انحطاط هغه نښې نه وې برسيره شوې، کومې چې دلومړي نړيوال جنګ وروسته دنظر ښښتنانو وليدلې، غربي تمدن ترهغه زمانې دژوندا و تخليقي وړتياوو نه برخمن وه، دهغه په سينه کې دټولې نړۍ دنيولو او دخپلواکو هېوادو او ولسونو دغلامولو ارزو په ټوپو وه

او په راتـه اوځليـدونکي اړخ يـې د غربـي تمـدن تـور کرغيړن او له کمزورتياوو ډک اړخ دنړيوالو له پامه پټ کـړی وه خـوډېر ژر داخلاقـو او دروحانيـت نشـتوالي، دهېوادونو لاندي کولو هـوس، تکبـر او قـومي انانيـت انګريـزان ديـوه نړيـوال مجرم ولس په حيث معرفي کړل پخپله هند کې چې هغوئ ځنګه ظهور وکړ؟ دا هرڅه دسر سيد احمد او دهغه ملګرو له ستر ګو پټ وو، هغه خپله له غربي تهذيب نه دومره متاثر شو چې خپل زړه، ماغزه او ټول فکري صلاحيتونه يې په هغه پورې وتړل داکتوبر

په ۱۲مه نيټه په کال ۱۸۷۰ز کې نو موړی د دې تهذيب دمينې جال کې په نښتو دهندوستان په مسلمانه ټولنه کې دغربي تمدن د اقدارو او اصولو پرليکو داصلاحاتو او تغيراتو راوستو سرګرم داعي او مبلغ شو کله چې خپل هېوادته ستون شو، په ډېر خلوص او توده جذبه يې دغربي تهذيب د دعوت بيرغ لوړ کړ، هم يې خپل ګرد صلاحيتونه دهغه پراختيا ته وقف کړل، دنظر له پلوه خالص ماده پرست او د مادي او کايناتي قوتونو پر وړاندې يې سرټيټ کړ،آن چې خپله عقيده او دقرآن مجيد ترجمه او تفسير يې هم دمادې له مخې پيل کړ، په دې کې يې دومره غلو وکړه چې دعربې ژبې د منل شويو اصولو، قواعدو، اجماع او تواتر پر خلاف يې هم له ځه ويلونه ډډه نه کوله، دهغه دغسي تفسير په ديني حلقو کې سخته غوسه وپاروله ډاکټر "محمد البهي" پخپل کتاب "الفکر الاسلامي الحديث" کې دهغه په دې رجحان نيو کې کړې، وايي:

دسيد احمد خان تحريک له طبعي علومو او دلوېديځ مادي تهذيب په عشق او مينه جوړ دی،بلکل هغسي ځنګه چې ددې زماني ځيني مفکران دساينس او دهغه له

ایجاداتو او برياوونه لەضرورت زيات مرعوب شوي، په کوم ساينس چې غربي تهذيب ولاړدی، دطبعي علومو يا طبعياتو سره زيات تړون او عشق د روحاني او مثالي اقدارو ارزښت ته زيان رسوي، حالنکي دا هغه اقدار دي، چې پرې داسماني اديانو اساس ايښی دی، دکومو استازيتوب چې اسلام تر بل هر چا زيات کړی، دطبعي علومو سره غير معمولي تړاو، يو وخت انسان له هر هغه څه نه د انکاره تربريده بوځي، کوم چې د بشر په حس او مشاهده کې نه راځي، هم دا وجه ده چې سيد جمال الدين افغاني دسرسيد احمد خان رشته او دوستې له الحاد سره تړلې بولي، ددې باوجود چې بيا بيا وايي: زه له اسلام دفاع کوم! ليکن هغه وربانديې د الحاد تورپورې کړی، د سرسيد دا وينا: چې دی کوښښ کوی چې او سنيو مسلمانانو ته يوه داسې طريقه را وباسي څو په هغه باندې په تلو سره دوئ پخپل اسلام هم ولاړ پاته وي او نوی ژوند خپل کړي، کوم چې د طبعې علومو په پرمختګ ترلاسه شوی دی.

دغه افراطي او مادي رجحان، دبشر د عقل تقديس او هغه د حدودو او عمل له اړيتاوو نه زيات پراخول، دخدای (ﷻ) قدرت او مشيت دفطرې قوانينو او دظاهرې اسبابو پابند ګڼل، په ډېر جسارت دقرآن تاويل او تشريح کول هغه څه وو چې ديو ې نوې فکرې ګډوډۍ، بې لارۍ او بې باکۍ دروازه يې پرانيسته او وروستنو خلکو ترې دومره ناوړه ګټه پورته کړه چې د قرآن تفسير او ترجمه آن دکوچنيانو لوبه شوه..

## دسرسيد داند کمزورې اړخ:

دسرسيد د تعليمي او اصلاحي پلان دوه برخې داسې وي چې داسلامي نړۍ لپاره دداسې ايجابي او تعميري انقلاب آنګيز بنسونکي ثابتې نشوې، چې دايمان او محمدي نبوت له جوړې تړلنې دحالاتو سره يې سمون

درلودای څو داسلامي نړۍ هغه خلا يې ډکه کړي وای، کومه چې مغربي تهذيب او د طبعي علومو ترقۍ له امله په ذهنونو کې پيدا وه.

لومړی: دا چې نوموړي هغه تعليمي نظام (کوم ته چې په لوېديځ کې د وروستۍ شکل حتمي بڼه ورکړل شوي وه) دهندوستان مسلماني ټولنې دحالاتو او غوښتنو پابند او تابع نکړ، ددې لپاره يې له نوي سره د کتنې او داسلامي بڼې ورکولو په اړتياوو غور ونکړ، نه يې د هغه نه دغربي تمدن او دهغه دمادي روح درنګ پاکولو لورته ته توجه ورکړه، دکوم چې هيڅ ختيځ وال هېواد ته اړتيا نه وه، د لوېديځ له ټولو ځانګړتيا وو سره يوځای، دهغه ځای دروح، مزاج او چاپيريال دودونو سره يوځای يې هند ته راوړو هغوئ نه يوازې په غربي تعليمي نظام اصرار ونکړ، آن دغربي تمدن او روح د قبلولو په اړه هم په شدت مصرو، دهغه په اصولو يې تينګار وکړ او پرېکړه يې وکړه چې په ليسه او پوهنتون کې به خامخا رئس، مدير، پروفيسر او سرښوونکی انګريزوي او که هر کله په عايد کې زياتوالی راغی دانګريزانو شمير به نور هم سيوا کوي.

په دې توګه دليسې او پوهنتون په استادانو کې خامخا ځلور پنځه انګريزان وو، هغوئ به د مختلفو ځانګو دچارو تنظيموونکو او سلاکارانو په نوم فرايض سرته رسول، دليسې په نظام او دشاګردانو په اخلاقو هغوئ ژور اغيز کاوه، هغوئ له خپل دغه اغيز نه په کار اخيستلو دهند په سياست کې تل لوی رول ترسره کاوه، لکه ديوې ليسې رئس "مسټربک" مشهور سياستوال او دهندوستان داسلامی سياست لومړی انګريز مشروه، دهغه دمشرتوب سياسي پاليلې بيا وروسته دمسلمانانو په حق کې له زيات افسوس نه ډکې ثابتې شوې (دتفصيل لپاره مطالعه کړئ دليکوال کتاب هندوستاني مسلمان)

غرض داچې دسرسید دعوت او دهغه تعلیمي نظریه له مغربي تهذیب سره لاززم او ملزوم وه، هم دا جه وه چې دهغه په اړه دخلکو په زړونو کې مختلف شکونه او شبهات پیدا شول په دیني حلقو کې ورنه دنفرت او کرکې څپه پورته شوه او دتحریک سره یې دخلکو لخوا ترپریکون او مقاطعې پورې نوبت ورسید، چې په دی سره ورته ګڼ مشکلات او خنډونه پیښ شول، دیني عالمان له پیله دانګریزي ژبې دزده کړې او ګټورو علومو سره مخالف نه وو (دتفصیل لپاره دشاه عبدالعزیز دهلوي ﷬ فتوا درباب حلت تعلیم انګریزي فتاوی عزیزیه) خو دسرسید حالت په لیدلو او دهغه د تحریک دناسم لوري په غوره کولو هغوئ اندیښمن شول ولې په لوی شمیر نور ناوړه عناصر هم پکې ګډ شول، مثلاً: دغربي تهذیب نه ښکاره مرعوبیت او په اخلاقو او عقایدو یې ناوړه اغیز او دانګریزي پروپیسرانو او چاروا کو لامحدود نفوذ په وجه دمسلمانانو ذهین ځوانان چې دسرسید په لیسه کې په زده کړو بوخت ول، له انګریزي زده کړو او برتانوي سیاست نه متاثر او مسحور شول هغوئ (علماوو) په دې کار سره مخالفت ته پورته شول، بل پلو هغو اغیزو او غربي چاپیریال چې دسرسید په لیسه کې ازادانه خوروه له امله یې داسي اسلامي نسل پیدا شو چې په نوم مسلمانان وو خود ذهن او فکر له پلوه خالص انګریزان وو، په ژوند، تمدن کې دانګریزانو دکړو وړو ملاتړي، په عقایدو کې کمزوری او متزلزل وو. بل دکمزوری اړخ یې دا و چې دهغوئ ټول زور دانګرزي ژبې او او ادب ترلاسه کولو ته ځانګړی وو، دعملي او صنعتي علومو لور (چې دترقی پوړی، او دغربي ولسونو دترقی او برتری راز پکې پټ وو دکومو انقلابي پایلې او اغېزې چې نوموړي لندن کې دخپلې استوګنې پرمهال لیدلې وي) ته سرسید احمد خان ډېره پاملرنه نه وه حالنکي دلوېدیځ نه که دکوم څه اخیستلو ته اړتیاوه او په هغه کې کمال موندل اړین وو، هغه عملي او صنعتي علوم او فنون وو، خو سرسید ددې سره به کلک مخالفت کاوه، نوموړی دصنعتي تحریک او پلان دومره قوي مخالف و چې دهغه په رد کې ګڼ مضامین ولیکل، دې لړ کې وروستی مضمون یې هغه و چې په کال ۱۸۹۷ز دفروري میاشتې په ۱۹مه نیټه دعلي ګړ مهالنی کې خپور شو، چې موخه یې دمولانا "حالي" په ژبه دا وه چې: "هندوستان دموجوده حالت له مخې صنعتي علومو ته اړتیا نه لري، بلکې تر ټولو مقدم او ډېره اعلی درجه اړتیا یې ددماغي تعلیمي ودې ده، کومه چې تر اوسه نده پوره (حیات جاوید دویمه برخه ۱۰۶مخ)

دصنعتي علومو دزده کړې پرضد دسرسید دهلوځلو او کوښښونو یادولو په ضمن کې مولانا "حالي "لیکي:

له څو کلو راهیسي زیاتره لوړپوړي چارواکي پخپلو څرګندونو او ویناوو کې دصنعتي علومو دزده کړې اړتیا وې بیانولي، په دې به له سرسید سره اندیښنه وه، چې هسي نه ددولت اراده دادبي او کلتوري علومو دزده کړې بهیر موقوف نکړي، له دې وجې که هرځای به یې دصنعتي علومو داړتیا لړ کې کومه مقاله په نظرورغله، خامخا به یې دهغې په رد کې ځواب لیکه په همدې بناء دکانفرانس (محمډن ایجو کیشنل کانفرانس) په څلورمه غونډه کې یې دادبي او کلتوري علومو په دفاع کې یوه اوږده مقاله وړاندې کړه، چې بیا دکانفرانس په اړه ځانګړې کتاب کې هم خپره شوي. (حیات جاوید ددویمه برخه ۱۰۶مخ)

ددې په نتیجه کې دغه اسلامي اداره دخالص علمي او ادبي رجحان سره یو ځای وړاندې لاړه او دغربي تمدنه دتقلید کولو ذوق او په انګریزي ادبیاتو کې دکمال حاصلولو شوق په حوصله مندو او ذهینو شاګرانو کې ځای ونیو، د هغه ددې کوښښونو په پایله کې دانګریزي

ځيني ښه ويناوال، قلموال او اداري کارپوهان پيدا شول، خو رياضي، طبعياتو، کيميا، ټيکنالوجۍ او صنعتي علومو ته چې اسلامي هند سخته اړتيا درلوده، پکې ممتاز شخصيتونه او استعدادونه پيدا نشول په دې وجه دهغوئ دکاري مسوليتونو دايره لنډه او يوائې ددولت تر عادي ماموريتونو او ځانګو محدود وه.

## ددې تحريک اغيز او خدمتونه:

ددې اوږده تفصيل او تنقيد باوجود دشک او شبهې پرته سرسيد احمد خان يو ځواکمن شخصيت و، تردې چې له هغه نه زيات قوي شخصيت دهغه مهال په رهبرانو کې نه ستر ګوکېږي، هغه په يوه ډېرلوی اوپراخ محاذ دوامدار جنګ وکړ، دکوم تحريک چې هغه قيادت کاوه، هغه ته يې لويه کاميابي ورکړه، دمسلمانانو نوی نسل يې له ځانه دومرزيات متاثر کړ، چې بل هيڅ تحريک هومره ندی کړی دهندوستان په اسلامي ټولنه کې دسرسيد احمد خان دځواکمن شخصيت اثر او اغيز دايره پراخه ده، هغه په ادب، ژبه، فکري لوري، دوينا اوبيان په ټولو اساليبو ژور اغيز وارد کړ او ټول يې متاثر کړل، ديوه داسي فکري او ادبي دبستان بنسټ يې کيښود کوم چې ډېرلوی لوی شخصيتونه پيدا کړل

ددې ستر تعليمي تحريک چې مشري يې نيمه پېړۍ دسرسيد احمد خان په غاړه وه، دپوهې او قابليت سربيره يې ځيني انکار نا منونکي نتايج وزيږول هغه د هندوستان په اسلامي ټولنه کې تعليمي، اقتصادي، خلا تر ډېره ځايه ډکه کړه، کومه چې دانګريز واکمنۍ وروسته پيدا وه، تر يوحده هغه له مسلمانانو نه ناهيلي اودکمترۍ احساس هم لري کړ، دهغه په اداره کې ځيني لايق، ځوانان، دقوي فکر څښتنان، ژورنالستان، قلموال، او داسي رهبران پيدا شول، چې هغوئ وروسته دتحريک خلافت، او دهند دازادۍ په خوځښت کې د رهبرۍ ځای

لاره، وروسته چې کله دپاکستان تحريک شروع شو، اوبيا دپاکستان اسلامي هېواد جوړشو، هغه ته دهمدې تعليمي مرکز فاضلانو له منځه ګڼ شمير پوهان او دچارو منتظيمين په لاس ورغلل، ليکن دمسلمانانو دنويو اونازکو ثقافتي اوفکري غوښتنو دپوره کولو لړ کې دهغه د اداري کردار هغومره مثبت او موثر نه و دکوم چې تمه ترې کيده، ولې دلوېديځ دعلمي اوعملي تجربو او ذخيرو نه دمسلمانانو او مسلمه امت دحالاتو او اړتياوو سره د سمې استفادې کولو مجتهدانه صلاحيتونو ته اړتيا درلوده، ديوه داسي نوې اسلامي نسل دروزلو اړتياوه، چې هغه په اصولو او عقايدو کې سخت اوپه هغو ټولو رازونو او کردارونو آګاه او خبروي چې سرته رسول يې دنړيوال تهذيب دقيادت لپاره اړين وو، دهغه نسل په نظر اوفکر کې دومره وسعت ظرفيت واى، چې دغربي ثقافت اوعلومو مغزيې اخيستی او دهغه (غربي تهذيب) له کمزوريو او ناضروري موادو يې ډډه کړې واى، ددې کار نتايج اوڅيړنې پخپلو مغزو داسي بشپړې کړې واى چې داسلامي ذهانت او خپلواکۍ اصليت پکې له ورايه ځرګند اوجوت واى، هم ګام په ګام د فکر او کردار سره "دلذت کردار او زړورتيا" انګيرنه مله واى، داهغه نسل و چې اسلامي نړۍ ورته په ډېره ورخطائی او ليوالتيا له ډېرې مودې دانتظار شيبې لنډولې او ورته سترګې په لاره وه، همدې نسل (که دالله ﷻ خوښه واى) اسلامي نړۍ دهغه حيرانيتاوو او اضطراب له ګرداب بيرون کړې وه، په کوم کې چې له اوږدې مودې راهيسي ښکېل ده په دې سره به اسلامي نړۍ ته دنړيوال قيادت، اوسني تهذيب په رهبري کولو کې دمرکزي رول موقف په برخه و ... *نوربيا*

# دشهید شیخ دوست محمد رحمه الله

## ژوند او کارنامو ته لنډه کتنه

ترتیب او تلخیص: حکمت

کـه دشـوروي یرغـل پـه وړانـدې دافغانـانو کفـر ماتوونکی جهاد دشلمې پیړۍ انساني حماسه وبلل شـوه ، نـو دامریکـایي طـاغوت پـه وړانـدې زمـوږ دمسلمان ملت جهاد چې په ډیرو کمو وسائلو خو لوړه اراده پیل شواو په درنو قربانیو دفتحې ترمنزله نږدې شـو پـه ډاډ سـره یـې دیوویشـتمې پیـړۍ اعجوبـه او حماسه بللی شو .

امریکایي یرغلگر چې ددرستې کفري نړۍ جابر ځواکونه ورسره اشربانې وو پـه ډیر کبر او غـرور یـې زموږ په پاکه خاوره یرغـل وکړ ، زموږ مجاهد ولس ورسره په داسې حال کې مقابله شروع کړه ، چې ظاهرا یې هیڅ په واک کې نلرل او ټولو دوستانو او دښمنانو تـرې مـخ اړولـی وو ، مگـر داچې داولـس نیت صـفا ، ایمـان محکـم او عـزم پـوخ وو لـه ټولـو ظـاهرو ناشونتیاوو سره سره وتوانید چې امریکایي کفر په گونډو کړي.

په تیرو دوولسو کلونو کې چې دافغان وطن پـه غرونـو او هوارو کې دکفر او اسلام کومـه معرکـه تیره شوه ، شـاید د تـاریخ یـوه بـې جـوړې حماسـه وي ، دلتـه دقربـانیو ، شـهادتونو ، فـداکاریو او حماسـو خـورا نادرې بیلگې نندارې ته وړاندې شوې ، ترڅو دااسلام دتـاریخ دا ویـاړلې معرکـه وگټـل شـوه ، ددې معرکـې گټـل کـوم سـاده کـار نـه وو ، بلکـې دااسلامي امت بې شـمیر غیرتـي زامنـو پـه دې معرکـه کـې خپـل ځانونـه قربـان کـړل او پـه دې توگـه یـې خپـل مسـؤلیت سـرته ورساوو ددې معرکې غازیان که څه هم په پنځلسم قـرن کې اوسیدل خو ددوی توکـل ، عـزم او ایمـاني قـوت نړۍ تـه دصدر اسلام حـالات وریـاد کـړل ، راځئ دلتـه دهمدې تاریخي معرکې دیوه وتلي او نومیـالي غـازي او شهید پـه ژونـد او کارنـامو سره وغږیږو ، دا غـازي شهید شـیخ دوست محمد دی ، نومـوړی دامریکا پـه وړاندې دجهاد دپیـل لـه نیتـې بیـا پـه ۲۰۱۳ م کـال کـې دشـهادت ترنیټـې پـورې د نورسـتان ولایـت عمـومي

جهادي مسؤل وو او په دې جهادپال ولايت کې يې د ټولو مجاهدينو مشري په غاړه درلوده.

## شهيد شيخ دوست محمد رحمه الله

شيخ دوست محمد د حاجي سفر محمد زوی د لعل محمد لمسی په ۱۳۷۷ هـ ق کال کې د افغانستان په ختيځ کې د نورستان ولايت د کانتوا په سيمه کې دنيا ته راغی.

شيخ دوست محمد چې په يوه ديندار کورنۍ کې زيږيدلی وو د ۷ کلونو په عمر وو، چې له خپل پلار څخه يې ديني زده کړې پيل کړې څرنګه چې شهيد شيخ صاحب له کوچنيوالي ډېر ذکی او ذهين وو، پلار يې غوښتل چې په خپل زوی باندې ديني علوم ووايي، نو ځکه يې د (کانتوا) سيمې له يوه عالم مولانا اختر محمد سره پاکستان ته واستاوو، شيخ صاحب له نوموړي عالم سره کابو څلور کاله په قبايلي سيمه باجوړ کې تېر کړل، هلته يې ورڅخه د فقهې ابتدايي کتابونه او عصري علوم ولوستل، او پاتې لومړنۍ، منځنۍ، او لوړې زده کړې يې په نورو مختلفو مدرسو کې له جيدو ديني عالمانو څخه تر لاسه کړې، د احاديثو کتابونه(صحاح سته) يې د (۱۴۰۱ هجري قمري) کال کې د پاکستان د خيبر پښتونخوا ايالت په مشهوره ديني اداره (دار العلوم نعمانيه) چارسده کې د وخت د لوی محدث مولانا (سميع الحق) رحمه الله څخه ولوستل، په نهايي ازموينه کې يې بريالی او ممتاز سند تر لاسه کړ او د فضيلت دستار يې په نوموړي مدرسه کې ترسر کړ.

څرنګه چې شهيد شيخ صاحب د نبوي احاديثو سره بې کچه مينه درلوده، نو ځکه يې د احاديثو کتابونه يو ځل بيا په (دار القرآن) صوابي) کې د وخت له لوی عالم شيخ القرآن مولانا محمد طاهر رحمه الله او شيخ الحديث مولانا محمد يار بادشاه رحمه الله څخه ولوستل.

د احاديثو تر څنګه يې د قرآن کريم تفسير هم په صوابۍ سيمه کې د يادو شيخينو څخه اخذ کړ، دغه راز يې يو ځل د قرانکريم تفسير له مولانا عبد السلام صاحب څخه هم ولوست.

## علمي مقام او تدريسي ژوند

شهيد شيخ صاحب ته الله تعالی ستر علمي شان او مقام په برخه کړی وو، چې د شاګردانو څخه پرته د هغه د سبق ملګري او د سيمې نور معاصر عالمان هم د هغوی په علمي نبوغ او تفوق باندې معترف وو.

شيخ صاحب د ټولو مروجه علومو څخه د اوو کالو په موده کې فراغت حاصل کړی وو، د فراغت په کال شيخ صاحب د عمر له لحاظه ډېر خام او کم سنه وو، چې پر مخ يې ږيره نه وه خو د ښه لوړ استعداد له امله ورته د خپلو همدرسو ملګرو په منځ کې د بخاري شريف د قراءت وياړ حاصل وو.

شيخ رحمه الله خورا ذکي او سريع الذهن و، کومه مسئله به يې چې يو ځل په کتاب کې مطالعه کړه، هغه به يې بيا تر کلونو کلونو د حافظې په ارشيف کې پرته وه، د شيخ صاحب مرحوم علمي قوت او متانت له دې څخه هم څرګند يږي، چې هغوی په خپل اوږد تدريسي ژوند کې کله هم په درس کې پر پوښتنه نه دي غوسه شوي، او نه يې له کومې پوښتنې ځان تېر اوو له هغوی نه خصوصا د تفسير شريف په درس کې مختلفې پوښتنې کيدلې او ده ورته ځواب وايه.

شیخ صاحب د کتابونو مطالعې سره بې حده شوق لاره ناشنا کتابونه به یې په بیه اخستل او مطالعه کول یې همدغه وجه وه، چې شیخ صاحب ته د کتابونو ګڼ عبارتونه او مشکل (ګران) لغتونه زده وو، په مطالعه کې د شیخ رحمه الله ورومبی انتخاب د احادیثو کتابونه وو او په دوهمه درجه کې ورته د (تفسیرونو) مطالعه په زړه پورې وه، په مطالعه کې به یې عجائب او غرائب هم زیات خوښېدل، او ړدي نادرې کیسې به ورته یادې وې، کله به چې کومه تعجبي پېښه ولیده، نو ملګرو او شاګردانو ته به یې هغه په ډېره مینه اوروله.

له فراغت وروسته نوموړي د دیني علومو په تدریس پیل وکړ چې د قبایلي سیمې باجوړ ایجنسي په (ترخو) سیمه کې د مولانا عبد الجبار صاحب په مدرسه (تعلیم القرآن) کې یې کابو دوویشت (۲۲) کاله د نبوي احادیثو او نورو دیني علومو په خدمت کې بوخت وو، دغه راز کله چې نوموړی له دې سیمې څخه دیر ته لاړ او هلته د شیرینګل سیمې په ګوریال کلي کې دیره شوه هلته یې هم علم او مطالعه مشغولا وه.

په دې موده کې نوموړي طالبانو ته د لوی دورې تر څنګ د فنونو هر ډول واړه او لوی کتابونه هم تدریسول او په رخصتیو کې به یې د موطأ امام مالک، موطأ امام محمد، معاني الاثار للطحاوي رحمه الله، سنن ابن ماجه، سنن نسائي او داسې نور کتابونه چې عموما پوره نه لوستل کیږي بالاستیعاب یې تدریسول.

نوموړي یو شمیر کتابونه هم تصنیف کړي چې نومونه یې په لاندې ډول دي

العقد الفرید في اثبات الفرد الشرعي من التقلید، الدرر السنیة، الترجمان لعقائد الشبان، البرهان الساطع علی عدم اعتبار اختلاف المطالع، تنبیه الانام عن حقیقة الدین والاسلام، هدیة الکتوري في مقدمة الترمذي، نداء البراءة والجهاد، المسدسات في مباحث الجهاد، خطبات مجاهد، نداء الفرسان لاهل البصیرة والایمان، دروس الجهاد، تحفة الاحرار

## دیني دعوت او د شریعت د نفاذ لپاره هڅې

شهید شیخ دوست محمد صاحب که څه هم د افغانستان د نورستان ولایت او سیدونکی وو، مګر د ډیورنډ پولې دواړو خواوو ته یې په خلکو خور پراخ نفوذ، اعتبار او شهرت درلود، نوموړی په باجوړ ایجنسۍ او شاوخوا سیمو کې د یوه پیاوړي او مخکښ دیني مشر په حیث پیژندل کیده.

جناب شیخ صاحب چې اصلي مشغولا یې دیني تدریس او امامت وو، ورسره یې همیشه د ټولنې اصلاح او شریعت د نفاذ لپاره هم هلې ځلې کولې.

نوموړي به همیشه ویل چې د مسلمانانو داوسنی بد وضعیت عامل په اسلامي نړۍ حاکم غیر شرعي مستبد او غرب ډول نظامونه دي، د مسلمانانو عزت او سرلوړي یوازې هغه وخت اعاده کیدلای شي چې په اسلامي هیوادونو کې اسلامي واکمني د صدر اسلام په ډول راژوندۍ شي، په مسلمانانو باندې باید یوازې اسلامي قانون واکمني وکړي او شریعت چې د دنیوي ژوند هراړخیز او بشپړ نظام دی باید په عمل کې پیاده شي.

جناب شیخ صاحب له ډیر پخوا څخه د اسلامي امارت یا خلافت ارمان درلود ، کله چې په افغانستان کې د طالبانو اسلامي تحریک راپورته شو او د خلافت راشده په نهج برابر د یوه اسلامي نظام د جوړولو لپاره یې کار پیل کړ ، شیخ دوست محمد صاحب ورسره هر اړخیزه همکاري پیل کړه ، نوموړی له خپلو ټولو ملګرو سره د اسلامي امارت په تشکیلاتو کې داخل شو له امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد سره یې بیعت وکړ او د شهادت ترنیټې پورې په هماغه بیعت وفادار پاتې شو ، کله چې د طالبانو تحریک د افغانستان ختیځ ته ورسید شهید شیخ صاحب چې دا مهال یې دیني علوم تدریسول له خپل نفوذ نه په استفاده یې خورا ستر جهادي او دعوتي خدمتونه سرته ورسول په پیل کې د کونړ او نورستان په ځینو سیمو کې د اسلامي امارت په اړه غلط تبلیغات کیدل ، او ځینو خلکو غوښتل چې د اسلامي امارت په خلاف خلک وپاروي ، مګر جناب شیخ صاحب د دې مناطقو خلکو ته د دعوت د لارې رهنمایي وکړه ، د اسلامي نظام ګټې او ضرورت یې ورته تشریح کړ ، ترڅو عام اولس په پوره اخلاص د اسلامي امارت سره ودرید ، په دې لړ کې نوموړي د کونړ او نورستان ولایت بیلابیلو سیمو ته سفرونه وکړل او ډیر مخالف مشران یې د خبرو د لارې د اسلامي امارت منلو ته تیار کړل د نورستان ولایت کامدیش ولسوالي د جناب شیخ صاحب د هڅو په نتیجه کې د اسلامي امارت تر ولکه لاندې راغله او بشپړه اسلامي واکمني په کې ټینګه شوه .

## د امریکا یرغل او په وړاندې یې جهاد

کله چې امریکایي اشغالګرو په افغانستان برید وکړ او په وړاندې مسلح جهاد پیل شو ، شیخ دوست محمد صاحب یو له هغو کسانو څخه وو چې په ډیر جرأت او متانت سره یې په ژبه ، لاس او مال سره جهاد پیل کړ ، نوموړي د امریکایي یرغل په مهال په باجوړ ایجنسۍ او د افغانستان په نورو سرحدي سیمو کې په سلهاوو ولسي خلک جهاد ته تیار کړل ، د غه راز یې خورا زیاتې مالي مرستې هم د مجاهدینو د کومک لپاره راټولې کړې .

د امریکایي یرغل د پیل په مهال د باجوړ ، ملاکنډ او د کونړ او نورستان په ګاونډ کې له نورو سیمو څخه زرګونو ولسي مجاهدین د نفیرعام په شکل د دښمن مقابلې ته وړاندې شول او د اسلام لپاره د هره نوع قربانۍ وعده یې وکړه ، چې ځینې یې د جهاد ډګر ته هم لاړل ، په دې تاریخي ولسي جهادي پاڅون او نفیرعام کې د شیخ دوست محمد صاحب ستر رول وو ، وروسته چې کابل د امریکایانو تر تسلط لاندې راغی ، شیخ صاحب بیا هم کرار کېناست ، بلکې هره شیبه په جهادي هلو ځلو بوخت وو .

د یرغل په ابتدایي کلونو کې شیخ صاحب همیشه په دې هڅه کې وو چې په اولس کې جهادي روحیه راژوندۍ کړې ، د همدې لپاره یې غږیز تقریرونه ثبتول ، لیکلي پیغامونه او رسالې یې تیارولې او بیا به یې په اولس کې توزیع کولې ترڅو د جهاد له فرضیت څخه خلک خبر شي او د امریکایانو په خلاف قیام وکړي .

نوموړي د خپلو ملګرو یوه جهادي جبهه جوړه کړه او د نورستان په ولایت کې یې په جهادي عملیاتو پیل وکړ .

نورستان ولایت چې د افغانستان په سطحه د امریکایانو په خلاف یو قوي او تاریخ ساز مورچل بلل کیږي ، د جهادي خوځښت مشري او ابتکار یې د شیخ دوست صاحب په واک کې وو ، شیخ دوست محمد صاحب چې د اسلامي امارت په تشکیلاتو کې د نورستان ولایت والي یا جهادي مسؤل په حیث یې دنده ترسره کوله د نورستان د ټولو مجاهدینو د استاد او رهنما حیثیت هم درلود ، ځکه د دې ولایت تقریبا ټول جهادي سرګروپان او ډلګۍ مشران د نوموړي شاګردان پاته شوي دي ، چې جهاد یې هم د نوموړي په هدایت او ترمشرۍ لاندې پیل کړی وو نو ځکه د نورستان جهادي بریاوې د شهید شیخ صاحب کارنامې بللی شو ، دا چې د شیخ صاحب په ابتکار په نورستان ولایت کې د اسلامي امارت مجاهدینو کوم فتوحات ترلاسه کړل دلته ورته په لنډو اشاره کوو .

## د شهید شیخ صاحب د مشرۍ په مهال په نورستان کې مهم فتوحات

ـ په ۲۰۰۲/۷/۲۴ م نیټه کله امریکایان نورستان ته راغلل نو د کامدیش د کوټیا د سیمې مجاهدینو په ، ، مارکونډه ، کې په یو امریکائي مرکز حمله وروړه چې په نتیجه کې ۱۴ خارجیان ختم او ګڼ نور ټپیان شول او په پای کې له سیمې وتښتیدل .

ـــ په ۲۰۰۴/۲/۲ م نیټه د کامدیش ولسوالۍ د کوټیا په سیمه کې مجاهدینو پر دښمن بریالي عملیات ترسره کړل چې د غه جګړه په نورستان کې د مجاهدینو لومړي تر ټولو مهم عملیات بلل کیږي د دې جګړې په ترڅ کې مجاهدینو د جنرال ، ، براون ، ، په نامه یو لوړ پوړی امریکائي پوځي جنرال وواژه چې جسد او وسله یې هم د مجاهدینو لاس ته ورغلل.

ـ دوانت وایګل ولسوالي یوه تکړه جهادي مشر مولوی حضرت عمر فاروقي د ۲۰۰۷م کال د اګست په میاشت کې د نیږدې ۱۵۰ تکړه ملګرو په ملتیا د ارنس نومې کلي د امریکایانو په ستر بیز د خارداره ټولو کمربندونو څخه په تېریدلو او بیز ته په ورننوتلو وتوانید د امریکایانو او داخلي عسکرو په ضد بریالی برید وکړي د دوئ جګړې ۲ ساعته دوام وکړ چې په نتیجه کې بیز د طالبانو په لاس فتح شو او د کلي د هغه کسانو په وینا چې په اردو کې یې کار کاوه په دې برید کې ۱۲ - امریکایي او ۱۴ داردو عسکر ووژل شول مولوی فاروقي او د هغه پنځه ۵ نور ملګري په همدې جنګ کې شهیدان شول خو په پایله کې یې امریکایان له سیمې وتښتیدل.

ــ په ۵ رجب ۱۴۲۹ هـ ق کال دوانت وایګل ولسوالي د جمچګل په سیمه کې د اشغالګرو عسکرو خورا ستر بیس چې دوئ ته یې خورا ستراتیژیک اهمیت درلود د مجاهدینو د مسلسلو بریدونو له امله تخلیه کړ او ګڼ شمیر غنیمتونه د مجاهدینو لاس ته ورغلل.

ـــ د ۲۰۰۸ م کال د جولائي په ۱۳ مه نیټه مجاهدینو دوانت په مرکزي بیز خورا بریالي عملیات ترسره کړل چې ترڅ کې یې لسګونه امریکایي عسکر له منځه لاړل.

ـــ په ۲۰۰۸ م کال د کامدیش ولسوالۍ د ګوهردیش په ډبه بیس باندې مجاهدینو خورا بریالي عملیات ترسره کړل چې په نتیجه کې ۱۲ خارجې

او داخلي عسکر له منځه لاړل او په پایله کې یرغلګرو دغه بیس تخلیه کړ.

ـ د ۱۴۳۰ هـ ق په ذوالقعدة میاشت کې ۵۰۰ تنه مجاهدینو د کامدیش پر دریو سترو بیسونو اورمړو ،کمو ، اوشرپیټ، باندې تهاجمي عملیات ترسره کړل چې په ترځ کې ۲۷ خارجیان او ۹ تنه داخلي اجیران له منځه ولاړل او ۴۳ پولیس او اردو اسیران شول په اخر کې ولسوالي ، قوماندانی ، مرکزي بیز او نورې ټولې دفاعي پوستې په بشپړه توګه د مجاهدینو لاس ته ورغلل، دغو بریالیو عملیاتو د افغانستان په عمومي وضعیت خورا ژور اغیز وکړ او د غربي رسنیو هغه دروغجن تبلیغات په اوبو لاهو شول کوم چې د امریکایانو د کامیابۍ او پر مختګ په اړه یې کول ان تر دې چې په هغه وخت کې د امریکایانو مشر جنرال مک کرسټل وویل چې که ۴۰ زره اضافي عسکر زر ترزره افغانستان ته ونه لیږل شي زرده چې د افغانستان په نورو سیمو کې هم د نورستان تجربه تکرار شي.

ــ په ۲۰۰۹/۱۱/۱۳ م نیټه د برګمتال ولسوالۍ د بدین شاه په سیمه کې بهرنیو او کورنیو ځواکونو د شپې پر مهال یرغل وکړ چې دیرغل نه څه شیبې وروسته د مجاهدینو لخوا له کلک مقاومت سره مخ شول دغه مقاومت کابو ۲ ساعته دوام وکړ چې په ترځ ې تر ۸۰ تنو پورې خارجي او دهغوئ داخلي ګوډاګیانو ته مرګ ژوبله واوښته.

ـ په ۲۰۱۰/۵/۲۹ م نیټه مجاهدینو د برګمتال په ولسوالۍ بریالي عملیات ترسره کړل او په نتیجه کې یې ولسوالي فتحه کړه

ـ په ۲۰۰۸ م کال د اپریل په شپږمه نیټه د دوآب ولسوالي د شوک په کلي باندې خارجیانو یرغل وکړ چې د سیمې مجاهدینو لخوا کلک مقامت سره مخامخ شول په نتیجه کې د دښمن دوه څرخي الوتکې وغورځیدلې او بالاخره یرغلګر پر شاتګ مجبور شول پدغه جګړه کې د دښمن خورازیات جنګي تجهیزات د مجاهدینو لاسونو ته ورغلل.

ـ د ۲۰۱۱ م کال مجاهدینو ته د دوآب پر ولسوالي تهاجمي برید وکړ چې وروسته له ډېر ساعت جګړې نه یاده ولسوالي په بشپړ توګه فتحه شوه او ډېر زیات غنیمت مجاهدینو تر لاسه کړل.

ــ په ۲۰۱۲/۱۱/۷ م نیټه د نورګرام ولسوالي د کله ګوش په سیمه کې اشغالګرو عسکرو خپله غټه پی آر ټی چې دوئ ته یې خورا ستراتیژیک اهمیت درلود د مجاهدینو د مسلسلو بریدونو له امله تخلیه کړه.

په د ۲۰۰۸/۷/۱۸ م نیټه دغازي اباد مجاهدینو د ډب بروړه په سیمه کې پر خارجي ځواکونو عملیات ترسره کړ چې په نتیجه کې له ۱۵ عدد ټانګونو څخه ۸ ټانګونه په بشپړه توګه له منځه یوړل چې پکې سپاره ټول سرتیري داور خوراک شول، په دغه کامیاب برید کې دوه لوړ پوړي امریکایان هم تلف شول.

ــ په ۲۱/مئ/۲۰۰۹ م نیټه مجاهدینو دغازي اباد موجوده ولسوالي دنیشګام کلي سره جوړشوي دداخلي او خارجي ځواکونو په یو مهم مرکز او یو بله دپوسته باندې تهاجمي برید وکړ او ۱۲ تنه خارجیان او ۷ داخلي دملي اردو عسکر ووژل شول او دیو ترجمان په ګډون ۱۲ تنه دملي اردو سرتیري ژوندي ونیول شول، او یاد مرکز او پوسته په کامل ډول لمنځه یوړل شول.

دغه راز په ۲۰۱۱ م کال کې دکامدیش ولسوالي دګوهردیش د سیمې پر پنځو پوستو مجاهدینو تهاجمي برید وکړچې د ګهیځ نه تر ۱۱ بجو پورې یې دوام درلود په نتیجه کې یې ۳۷ سرحدي عسکر ختم او یو تعداد ژوندي دمجاهدینو لاسونو ته ورغلل، همداراز پنځه واړه پوستې فتحه شوې.

په لوړو یادو شویو عملیاتو کې چې دافغانستان په معاصرو جهادي عملیاتو کې مهم او ټاکونکي عملیات بلل کیږي ، شهید شیخ صاحب یا په کې مستقیم شرکت درلودلی او یا هم دنومړي په ابتکار ، مشوره او قومنده ترسره شوي دي ، چې دهمدې یادو شویو او ګڼو نورو تاریخ سازو عملیاتو په برکت په نورستان ولایت کې دیرغلګرو پوځي زور مات شو ، او نورستان هغه لومړنی ولایت وو چې یرغلګرو ترې تیښته او شاتګ پیل کړ.

## د شیخ دوست محمد صاحب شهادت

د شیخ دوست محمد صاحب دجهادي ژوند معمول دا وو ، چې زیاتره وخت به دخپل مسؤلیت په ساحه کې په جهادي سیمو ګرځیده ، کلي په کلي او جبهه په جبهه به یې دمجاهدینو او عام اولس حال اخیست ، هغوی ته یې دیني موعظې او هدایات اورول او کله ناکله خو به یې دقرانکریم ترجمه او تفسیرهم ورته کاوو ، دغه راز به یې دخلکو دیني پوښتنې او استفتاء وې ځوابولې.

شیخ صاحب له شهادت څخه وړاندې یو داسې خوب لیدلی وو چې نومړي دشهادت بشارت باله ، چې بالاخره همداسې وشول او نوموړی په څو ورځو کې ددښمن په برید کې شهید شو ، دنومړي یو ملګری وایي چې شیخ صاحب له شهادت څو ورځې وړاندې راته وویل چې یو شهید ملګری او دده شاګرد مولوي سلیمان د واما د کلي او سیدونکی کوم چې د شیخ رحمه الله د شهادت څخه یو کال وړاندې شهید شوی وو ، هغه په آس باندې سپور دی او یو اس یې زما لپاره زین کړی ، له ځان سره راروان کړی دی او ماته وایي چې شیخ صیب، راځه چې ځو دا آس مې ستالپاره راوستلی دی، شیخ صاحب وویل، چې زه ورسره په آس باندې سپور شوم او ورسره روان شوم.

سره له دې چې شیخ صاحب په پرلپسې توګه ددښمن تر تعقیب لاندې وو ، څو ځلې یې چاپې ورباندې واچولې ، او د ۲۰۱۱ م کال په وروستیو کې یې دوه ځله د بې پیلوټه طیارې حملې ورباندې وکړې او څو ځله یې دنومړي دشهادت دروغجنه ادعاء هم وکړه خو دې ټولو خطراتو نوموړی له جهادي فعالیت څخه منع نه کړ ، او په پوره زړورتوب یې دپخوا غوندې په نورستان کې خپل جهادي فعالیت ژوندی ساته.

تردې چې په ۲/۸/۱۴۳۴ هـ ق نیټه باندې دنورستان ولایت په شملې ګل سیمه کې په داسې حال کې چې دیوه کور ترمخ ترڅپره لاندې له خپلو ملګرو سره ناست وو او دیوې شرعي مسئلې دحل لپاره یې په خپل لیپ ټاپ کمپیوټر کې کتاب مطالعه کاوو ددښمن د بې پیلوټه طیارې دبرید هدف وګرځیده او ددوو تنو نورو مجاهدینو مولوي محمد طاهر او یوه بل زلمی مجاهد سره په شهادت ورسید .

انا لله وانا الیه راجعون




دريمه برخه

ما داصولِ فقه د پخوانيو څلورو كتابو يادونه وكړه ، دامام ابوحنيفه (رحمه الله) "كتاب الرائيه" او پـه همـدې نـوم دهغـه دوه شـاگردانو(امـام ابويوسف او امام محمدرح) دوه كتابونه او دامام شافعي (رحمه الله) "كتاب الرساله" له هغه مهال تر دې وخته شاوخوا څوارلس سوه كاله وشول چې شتون لري، مونږ ته ددې څلورو لومړنيو كتابو دشرحو پر ته بل څه پـه لاس نـه راځـي ، پـه ټـوليز ډول دنوروسـيمو پـه نسـبت لـه دې فـن سـره علاقمنـدې پـه تر كسـتانيانو كې زياتـه وه،يا پـه بلـه ژبـه دې فـن تـه ترقـي تر كانو ور كړي، هغوئ له شلو نـه زيـات داسـي كتابونه ليكلي چې يا هغه تكرارې دي اويا د شرحو او غورچاڼ بڼه لري، مـثلاً: يو ضـخيم كتـاب "ابو الحسين البصرې" ليكلى ، چې په دوه ټوكونو كې يونيم زرمخونو كې چاپ شوى ، چې لوست اومطالعه يې دهر سړي دوس كار ندى، بيا دهغـه (كتـاب )خلاصه امام بيضـاوي وليكلـه، هغـه ټول ټال پـه شلو مخونو كې ديونيم زرمخونو غورچاڼ كړى ،بيا د"بيضاوي" پـه دې لنـډيز اوغـور چـاڼ دشرحو اوحاشيو ليكلو يوه اوږده لړۍ غځيدلې، درسا بيضاوي لوستلى شي ، خو پـه هغـه دپوهاوي لپـاره د شرحو،حاشيو او د"حاشية الحواشي" دمطالعې ضرورت دى، پـه لنډو الفاظو دالړۍ تر نن روانه ده..

پـه ننۍ زمانه كې كه پـه دې موضوع يـو نوى كوښښ شوى، هغـه د ارواښـاد جنـاب عبـد الـرحيم صـاحب لخوادى ،څوك چې دهندوسـتان داسـامبلۍ پخوانـى غـړى و ، بيـا وروسـته پاكسـتان تـه راغـى، نومـوړي دقانون پـه ډگر كې گرانقدر خدمتونه كړي، څه مهال چې پـه "مـدراس" كې دمرافعـه محكمـې رئـس و، د كلكتـې پوهنتـون پـه بلنـه يـې پـر دې موضـوع (اصـول فقـه) يـو لكچـر ور كـړ، كـوم چـې بيـا دمحمـدن جيـو سپرو ډنس(CEMUHANADAN JURISPRUDAN) پـه نوم دكتاب پـه بڼه چاپ شو ، پـه هغه كتاب كې نوموړي د لږ څـه جدت نه كاراخيستى، هغه داسي چې داصول فقه پـه اړه دپخوانو كتـابونو دموادو راوړلو سربيره اروپـا كې پـه فلسفه او قـانون كوم كتابونه ليكل شوي دي لـه هغـو نـه يـې هـم اسـتفاده كړيـده او بيـا د اسلامي او اروپـايې قوانينو ترمنځ يې ديوې موازنې كوښښ هم كړى دى.

لـه دې پلوه دعبـدالرحيم صـاحب كتـاب د اصول فقـه پـه موضـوع يـو داسي كتاب دى، چې پـه پخوانو كتابو كې يونوى باب زيات كـړ، پـه هغـه كې مونږ تـه داسي ځېزونه پـه نظر راځي چې پـه پخوانو كتابونو كې دهغو ذكـر نـدى شوى ، دمثـال پـه تـو گه:داصـول فقـه پـه پخوانو كتـابو كې لومړۍ پوښـتنه داكېـږي : دقـانون ماخذڅـه دى؟ ځـواب يـې دى: "قـرآن، حـديث، اجمـاع اوقياس" پـه هغو څلور واړو كې دا ذكـر نشـته چې قوانين بـه پـه كومو، كومو موضوعاتو وي ؟ځيني عبادات دي، ځيني معاملات ، ځيني قوانين دتعزيراتو پـه اړه دي او ځيني بيا دوراثت پـه باره كې دي، خود دې علاوه نور هم شتـه، لكـه نړيـوال قـوانين او "كانسـټي ټيـو شـنل لا" او داسـي نور... زمونږ دفقهې پخوانو كتابو كې ددې ذكر نشته ، قضاوت پوه عبـدالرحيم دقوانينو پـه اصولو كې داهم تشريح اوڅيړلي ،چې واقعـاً دادنوموړي لويـه علمي كـار نامـه ده، چې نوي او پخواني معلومات يې پخپل جامع كتاب كې يوځاى راوړي.

پاى كې پـه مختصر ه تو گه داجتهادپه اړه به دا عـرض وكړم چې : اجتهاد څـه شـى دى؟ ځمـا دتيـر وويناوو څخـه بـه هـم تاسـو تـه جوتـه شوې وي چې داجتهاد اجازه رسول الله (صلى الله عليه وسلم) معـاذبن جبـل (رضي الله عنه) تـه پـه دې شرط كړى وه چې كوم ځاى قران اوحديث دواړه ساكت وي!! كه پـه قران كې صراحت شوى و ، بيا اجتهاد كول گنجايش نلري، كه پـه قرآن كې سكوت و، ليكن پـه حديث كې صراحت و، بيـا هـم اجتهادتـه

اړ تیا نشته، اجتهاد یوائې هغه وخت جایز دی چې کله دغه دواړه بنسټیز اساسات یعني په قرآن او حدیث دواړو کې زموږ د پوښتنې په اړه سکوت په نظر راشي، دقانون جوړولو دې کوښښ ته زموږ فقهاوو ډېره وده ورکړه او ورته یې د لږ باریک توپیر په وجه هم ګڼ نومونه ټاکلي، چې یو د اجتهاد لفظ هم دی، دقیاس لفظ هم دی، د استدلال لفظ هم دی او ورته د "استصلاح" لفظ هم کارول کېږي، داټول مترادف ندي، بلکې ترمنځ یې نهایتي باریک توپیر موندل کېږي، په دې لړ کې زه به په خاص ډول د "استحسان لفظ یادونه وکړم، "استحسان" دحنفي مسلک خصوصیت دی او نورو ته خوښ ندی، د هغوئ ناخوابښي دیوې تیروتنې او ناسم فهم له امله ده، خو په هر صورت هغوئ یې نه خوښوي، تر دې چې تاسي ته دې دحیر انیتالامل نه ګرځي، امام شافعي (رحمه الله) یوه رساله لیکلې دهغې (رسالې) نوم دی "الرد على الاستحسان" په هغه کې یې داستحسان په رد کې دلایل راوړي، دهغې (رسالې) له مطالعې نه موږ ته په نظر راځي چې هغه (امام شافعي) له استحسان څخه دیوه فرضي مفهوم په اخیستلو رد کړی دی، او د حنفي فقهې له مخې داستحسان مفهوم دادی که دکومې مسئلې دظاهري حالت په بناء څه خبره په ذهن کې ګرځیده، یوائې په هغه دبسیا پر ځای دبنه ژور غور فکر وروسته او دحقایقو دعمق او تل په پام کې نیولو سره دې حکم وشي، په دې توګه له استحسانه په کار اخیستو حنفي ایمه یوائې ظاهري حالت کافي نه بولي، بلکې دیوه عمیق سبب معلومولو په اساس حکم ورکوي، مثلاً: زه په تاسو کې یوه ته دامانت په ډول څه وسپارم!! چې ته! دافلاني سړي ته ورکړه! تمه او توقع مې داوې چې هغه تن، ځما امانت فلاني سړي ته رسوي! نن سبا دپوست بکس نظام له لارې له یوځای نه بل ځای ته پیسي لیږل عادي کار دی، چې ورته "مني اړډر" وایي، ته! پیسي دپوست بکس ادارې ته سپاري او ورته وایي چې دافلاني سړي ته ورسوئ! کومې پیسې چې تا دپوست بکس ادارې ته وسپارلې، دامانت د عامو اصولو له مخې: باید بعینه هم هغه پیسې چې تا سپارلې هغه سړي ته ورسوي، خو داوسني پوستي نظام تعامل ته په پام: ستا پیسې به په دولتي خزانه کې جمعه شي او دچا په نوم چې تا پیسې لیږلې (په مني اړډر) هغه ته ددې پیسو په بدل کې نورې پیسې ورکوي، داصل امانت یا پیسو لیږلو ته اړ تیا نشته، هم دا کار او عمل داستحسان مفهوم دی! اګر که دا طریقه دامانت قانون دلوړي یا سطحي مفهوم نه یو څه مخالفه ده، خو په دې سره دامانت حق په ادا کولو کې اسانتیا ده خو چې داصلي؛ او متبادلو پیسو ترمنځ دمالیت له پلوه کوم توپیر نه وي.

ددې لنډې تشریح موخه او منشاء داوه چې مسلمانانو دقانون علم دخپل اجتهادي فکر په مرسته داسې مدون کړی، چې اسلامي قانون دهغه جوړونکي (رسول الله (ﷺ) دوفات وروسته او دهغه په نه موجودیت کې هم ستونزه رامنځته نشوه او نن هم اسلامي قانون دهمدې اصولو په وجه پخپل حالت کې خوندي او په هره زمانه کې دعمل لپاره وړ قانون دی، یوه نکته بیانوم بیا دا لیکچر پای ته رسوم هغه دا چې دایو منل شوی اصل دی چې په هر قانون کې تغیر یا پخپله قانون جوړونکی راوستی شي، یاد هغه نه هم لوړ شخصیت! له هغه نه کمتر شخص ته دقانون بدلولو اجازه نشته، که الله (جل جلاله) کوم حکم کړی، نو هغه یوائې هم الله (جل جلاله) بدلولی شي! هم دا رنګه دنبي په حکم کې تغیر یا پخپله نبي راوستلی شي، یا الله (جل جلاله) او یا د الله (جل جلاله) له لوري بل نوی راغلی پیغمبر؛ د پیغمبر نه دټیټې مرتبې سړی یې نشي راوستلی، مثلاً: یوفقیه عالم یې نشي بدلولی، له دې پلوه داسلام د قوانینو هغه احکام چې په قران کې دي، هېڅوک تغیر ولی نشي، هو! یوفقیه عالم دبل فقیه عالم رایه ردولی شي، په ځای یې خپله رایه وړاندې کولی شي، څنګه چې ماوړاندې عرض وکړ، چې دا کار یوائې تر انفرادي قیاس، رایې او استنباط پورې خاص نه بلکې داجتماعي رایې په اړه هم پر ځای دی، لږ تر لږه په حنفي مذهب کې داخبره منل شوې، چې نوې اجماع پخوانۍ اجماع منسوخولی شي، فرض کړئ په یوشي اجماع شوې، موږ داجماع منو، خو معنی دا نه چې تر قیامته بل شخص یې په اړه څه ویلی نشي که یو عالم په ادب او د دلایلو په ځواک د یوې اجماع خلاف نوې رایه وړاندې کړي او بیا دهغه رایه نور فقهاء هم ومني، نو دا یوه نوې اجماع شوه، نوې اجماع پخوانۍ اجماع منسوخولی شي، دا اصول مشهور حنفي امام "ابو الیسر البزدوي پخپل کتاب "اصول الفقه" کې بیان کړي، امام "بزدوي" دڅلورمې او پنځمې پیړۍ په منځ کې نومیالی فقیه تیر دی، په اسلامي قانون کې دنوموړي لوې کارنامې دي، دهغه ددې وینا په اساس موږ ویلای شو چې اجماع دستونزو سبب نه ده نور بیا

# آیا رښتیا د اوکراین په سر د نړیوال جنګ خطر زیاتیږي؟

حسن مومند

په اوکراین کې د روانو حالاتو له امله چې دا هېواد اوس په نړیوالو مطبوعاتو کې د خبرونو او بحثونو د سر موضوع ګرځېدلې ده په ښکاره یې حالات د خرابېدو پر لور روان دي او سمدستي یې ښېر ته د سمېدوڅه نښې ی کاري.

د اوکراین په روانو او احتمالي راتلونکو حالاتو مې دڅومخونو لیکلو اراده ځکه کړیده چې په مطبوعاتو کې مې واورېدل چې وړمه ورځ یاني د مارچ په ۲۰مې نېټې په بروکسل کې د اروپایی اتحادي دغړو هېوادونو دمشرانو جوړې شوې غونډې ته ددې اتحادي د پارلمان مشر مارتن شولتیس دخپلو خبرو په ترڅ کې وویل،، داوکراین دستونزې پر سر په اروپا کې دجنګ درامنځته کېدلو خطر نه ردوم، ددې خبرې احتمال شته چې ددې ستونزې پر سر اروپا کې جنګ رامنځته شي،،

په نړیوالو مطبوعاتو کې هم داروپائی اتحادې دپارلمان دمشر څرګندونو ته ورته خبرې په عامېدو دي او ډېر خلک همدا یوه خبره کوي چې شاید داوکراین روانه ستونزه ددریم نړیوال جنګ درامنځته کېدو سبب شي.

دلته دنړیوال جنګ یالړ ترلړه ددوه سترو قدر تونو ترمنځ دجنګ درامنځته کېدو خطر څومره دی؟ لیکنه مې دهمدې یوې خبرې دروښانه کولو لپاره ده خو ترې وړاندې به داوکراین او کریمیا تېر سیاسي او جغرافیایی حالت لږ وغږیږو .

د جغرافیایې موقعیت له مخې اوکراین خورا مهم هېواد دی، په شرقي اروپا کې واقع ددې ختیځ او شمال ختیځ ته روسیه پرته ده شمال لویدیځ ته یې بیلاروس دی، لویدیځ ته یې پولینډ، سلواکیا او هنګري پراته دي او لویدیځې پولې یې درومانیا او مالدوا سره لګېدلې دي، ۶ لکه ۳ زره ۶۲۸ کیلو متره مربع مساحت لري چې د همدې پراخه مساحت درلودلو له امله دا هېواد داروپا تر ټولو ستر هېواد ګڼل کېږي او که دروسی اروپائی برخې ته اعتبار ور کړو نو بیا داد اروپا دوهم ستر هېواد دی ۴۵ میلیونه نفوس لري چې ۷۷سلنه یکې ددې سیمې خپل وګړي دي ۱۷ سلنه یې دبیلاروس سره تړاولرونکي وګړي دي اوباقي پاتې یکې دتتاري مسلمانانو په شمول نوراقلیتونه ژوند کوي؛ ددې هېواد دولتي ژبه اوکرایني ده خو روسي ژبه هم یکې عامه ده.

دا چې ډېرې پراخې زراعتي ځمکې لري نو نړۍ ته دخوراکي موادو په سترو صادرونکو هېوادونو کې شمېرل کېدلو ؛ په ۲۰۱۱ کال دخېرو شویو ارقامو له مخې اوکراین په نړۍ کې داجناسو دریم تر ټولو ستر صادرونکی هېواد و.

کیف او سواستوپل ددې هېواد ستر او مشهور ښارونه دي، چې دبحر اسود لپاره د روسې دسمندري جازونو اډه هم په سواستوپل ښار کې ده ؛ دا هېواد ۲۵ ولایتونه لري.

په دشلمې پېړۍ په اوائلو کې چې اوکراین دپخواني شوروي اتحاد برخه ګرځېدلې وه نو تر ۱۹۹۱ پورې یې برخه وه، خوټاپو وزمه کریمیا یو مستقل هېواد و چې دخروشوف دواکمنۍ پر مهال روسې دا داوکراین برخه ګرځولې وه.

کله چې د۹۰ یمې لسیزې په سر کې شوروي اتحاد ټوټې کېدلونو د۱۹۹۱ کال ددسمبر په لومړۍ نېټې په اوکراین کې هم دشوروي اتحاد نه دجدا کېدلو لپاره ټولپوښتنه او دهېواد لپاره دنوي ولسمشر دټاکلو په موخه انتخابات ترسره شول چې یکې دهېواد ۹۰ سلنې وګړو ګډون وکړ دهېواد دازادۍ په حق کې دقاطع اکثریت رایو درامخې ته کېدوله امله دې هېواد ازادي واخسته اولومړی ولسمشر ور ته وټاکل شو؛ دازادۍ

اخستلو پر مهال او کراین دنړۍ په سطحه داتومي وسلو تر ټولو ستره دریمه ذخیره درلودله چې دامریکا اونورلویدیځ دسخت فشار له امله او کراین ددې وسلو زیاتره برخه ضایع کړه ؛ څه برخه یې په ۱۹۹۲ کې روسې ته دیو رامنځته شوي تړون په نتیجه کې انتقال شوهاو بورانیم خوېې ټول دډېرو کمو مادیاتو په مقابل کې لویدیځ ته ورسپدل .

او کراین داتومي اونورو عصري وسلو نه بې برخې وڅکه خو ترې روسانو ټوله کریمیا ونیوله خو او کراین پرې یوډز هم ونه شو کړای .

له ازادۍ اخستلو وروسته دشوروي اتحاد دنورو ازادو شویو هېوادونو برعکس او کراین دډېر زیات اقتصادي زوال ښکار شو، د۱۹۹۱ نه تر ۱۹۹۹ پورې او کراین دخپلو ملي حاصلاتو ۶۰ سلنه له لاسه ورکړه چې له امله یې بدامني او اداري فساد ډېر زیات او په هېواد کې په ۱۹۹۶ کې ددولت پرضد دولس له لورې لاریونونه پیل شول تردې چې ولسمشر استعفاورکړه او لونید کوچما دهېواد دوهم ولسمشر شو، چې یې نوی اساسي قانون نافذ کړ او هېواد ته یې نیم ولسمشریز نظام راوړ ؛ بیا په ۲۰۰۴ کې په ترسره شویو انتخاباتو کې وکټریانو کوویچ بریالی اعلان شو خو داچې هغه دوخت صدر اعظم هم و نو خلکو پرې په انتخاباتو کې ددرغلۍ تور ولګولو ولس دانتخاباتو دنتایجو نه دانکار کونکي اپوزیسیون مشر وکټریوش چنکو په ملتیا لاریونونه پیل کړل ؛ سترې محکمې انتخابات لغوه اعلان کړل، وکټریوش چنکو ولسمشر او مېرمن یولیاتیموشنکو لومړۍ وزیره شوه چې د۲۰۰۵ ددسمبر پورې په همدې منصب پاتې وه ؛ په ۲۰۰۶ کې یو ځل بیا وکټریانو کوویچ لومړی وزیر شو، په ۲۰۰۷ کې ناڅاپي انتخاباتو رامنځته کېدو ته لار برابره شوه چې یکې مېرمن یولیاتیموشنکو لومړۍ وزیره شوه چې د۲۰۱۰ دمارچ تر ۱۱ پورې دخپل دې منصب په ساتلو وتوانېدله، داقتدار نه دمحرومو الي نه پس پرهغې دواک نه دناوړه ګټې اخستلو او دملي شتمنیو دلوټولو تورونه ولګېدل، په عمري حبس او ۱۸۸ ملیونو ډالرو جریمې محکومه شوه.

د۲۰۱۰ کال دفرورۍ په ۲۵ مې نېټې وکټریانو کوویچ ولسمشر شو چې د۲۰۱۴م کال دفرورۍ تر ۲۲ مې نېټې پورې په خپل همدې تر ټولو لوړ دولتي منصب پاتې شو، داوسني ولسي پاڅون په نتیجه کې هغه روسې ته په تېښتې بریالی او پرځای دپارلمان نوی ویاند الیګزانډر ټرچاینوف دهېواد عبوري ولسمشر شو.

نو که په دقت وګورو داسې ښکاري چې دازادۍ اخستلو داعلان نه تر ننه په تېرو کابو ۲ لسیزو کې په او کراین کې سیاسي ګډوډي وه خو اوسنی سیاسي بحران یې دتېرو کابو ۲ لسیزو دسیاسي ګډوډیو په پرتله ځکه ډېر خطرناک دی چې پکې دنړۍ دسترو ځواکونو مفادات متصادم شوي او حالت دهرې نه بلې ورځې ته خرابېږي.

په کوموهېوادونو کې چې انقلابونه رامنځته کېږي نو کله نا کله پکې داسې ولسي اقدامات رامنځته شي چې څمکني حقایق ډېر وروسته پرېږدي ؛ او کراین کې همداسې وشول ؛ هورې چې په ډېرې تېزۍ پېښې په مظاهرو او مظاهرې په انقلاب بدلې شوې نړۍ یې حیرانه کړه، داډراماتیکې ټولې پېښې په یوې اوونۍ یانې دفرورۍ د ۱۸ مې نه تر ۲۵ مې نېټې پورې رامنځته شوې.

داو کراین په اړه دروسې او لویدیځ ترمنځ تېر کال دنومبر په ۲۲ مې نېټې له دې امله کشمکش پیل شو چې اروپائي اتحادې او کراین ته دتجارتي تړون وړاندیز وکړ چې تر مخه به یې او کراین ددې اتحادې پرمخ دسوداګرۍ لپاره دکیف دروازې پرانستلې، او کرایني ولسمشر وکټریانو کوویچ چې روسې سره یې نېږدې اړیکې درلودلې داروپادا وړاندیز رد کړ چې ورسره سم اپوزیسیون داروپایي اتحاد سره دتړون په حق کې پرخلکو دازادۍ څلور لارې ته دراوتلو غږ وکړ، دې میدان ته په لوی شمېر خلک راووتل؛ لاریون دهرې نه بلې ورځې ته ستر شو خو ولسمشر یې نه یواځې داچې څه پر واونکړه بلکې ددسمبر په وروستیو کې یې دروسې سره د۱۵ ملیارد و ډالرو مرستو دترلاسه کولو تړون هم لاسلیک کړ دې دمظاهرینو غصه نوره هم زیاته کړه چې زیاترو مبصرینو همدا دروسي مشر پوتین فتح وګڼله.

په جنورۍ کې مظاهرې راکمې شوې خو په فرورۍ کې یې بیا زور واخست او په ولسمشر یانو کوویچ دلویدیځ له لورې فشار هم زیات شو ځکه چې دلویدیځ یقین ته پریوتې وه چې که دروسې مخه ونه نیول شي شاید بیا دسوړ جنګ یاد تازه شي؛ دمظاهرو او دفشار دزیاتوالي له امله او کرایني ولسمشر اپوزیسیون ته پدې تمه په حکومت کې دګډون دعوت ورکړ چې مظاهرې به ختمې او واک به یې تر ۲۰۱۶ پورې وغځېږي خو چې ګټه یې ونکړه نو اپوزیسیون ته یې اخطار ورکړ چې دولت ته دې دګوابښونو لړۍ بنده کړي؛ په همدې ورځو کې داو کراین ولسمشر داولمپیک ژمنیو لوبو په لړ کې سوچي ته

ولاړ چې هوري يې دخپل روسي سيال سره هم ليده وشول او چې دروسې نـه راسـتون شـو نـو دازادۍ څلور لاري کې دراټولـو شـويو مظاهرينو دخپرولو حکم يې صادر کړ. امنيتي ځواکونو مظاهره چيانو ته ۱۲ ساعته وخت ور کړ خو چې دمهلت په پوره کېدو مظاهره چيان پانځېـدل نـو پوليسـو او نـورو امنيتـي ځواکونـو يـې پـه زور دپـاځولو کوښښ وکړ چې پرې مظاهره چيانو پترولي بمونه او تيګي وار کړې امنيتي ځواکونو په مظاهره چيانو ډزې پيل کړې چې په نتيجه کې نږدې ۱۰۰ تنانو خپل ژوند له لاسه ور کړ.

ددې پېښې درامنځته کېدو نه پس امريکا دالمان نه دستونزې دحل لپاره دمنځګړيتوب غوښتنه وکړه؛ دالمان، فرانسې او پولينډ دباندنيو چارو وزيران دامريکا دهمدې غوښتنې نه پس کيف ته ورسېدل چې داو کراينې ولسمشر او اپوزيسيون ترمنځ د، قومې دولت په تشکيل، دولسمشر او پارلمان ترمنځ دواک په توازن، په ۲۰۰۴ کې دجوړ شوي اساسي قانون په نفاذ ،دوژل شويو تنانو دپيښې په اړه دڅېړنو او ستمبر کې دانتخاباتو په کېدلو ديو تړون په رامنځته کولو بريالي شول؛ امريکا ددې تړون هر کلي وکړ او روسې يې په نفاذ کې دمرستې ژمنه وکړه خو مظاهره چيانو دا تړون رد کړ او دولسمشر داستعفا او ژر تر ژره دانتخاباتو په غوښتنه کلک پاتې شول؛ په همدې وخت کې پارلمان غونډه راوبلله چې دپارلمان ۳۸۷ غړو پکې ګډون وکړ دګډونوالو په قاطع اکثريت دپارلمان نوی وياند وټاکل شو؛ وياند ددپارلمان دغړو په اتفاق دتورچينوف په عبوري ولسمشر جوړولو، دکورنيو چارو دوزير دبرطرفۍ، داساسي قانون دنفاذ دانتخاباتو په قوانينو کې دترميم او دزندان پخوانۍ ولسمشرې يوليا تيماشنکو دازادۍ پرېکړې يې وکړې.

دپارلمان دپرېکړو نه څو ساعته وړاندې او کراينې ولسمشر په خپلې تلويزيوني وينا کې په کيف کې رامنځته شوې پېښې په بغاوت تعبير کړې او زياته يې کړه چې يواځې هماغه قانوني ولسمشر دی خو چې وضعيت يې په ګټه نه و نو دهېواد ختيځې سيمې خرکيف ته په تېښتې کې ور ته عافيت بښکاره شو؛ خرکيف سيمه کې دروسي ژبو اکثريت دی ؛ خرکيف ته دولسمشر وکتړيانو کوويچ دتېښتې نه پس دحالاتو دمخ پر بښه کېدو تمه کېدله خو چې دو کتړيانو کووچ په غوښتنې روسې داو کراين کريميا نومې سيمې ته خپل فوځونه داخل

او دا ټوله سيمه يې اشغال کړه نو حالت له بدو بدتر شول؛ دروسې دا اقدام داو کراين عبوري ولسمشر په خپل هېواد بهرني فوځي يرغل وګڼلو؛ فوځ تـه يې دتيارسۍ حکم وکړ او پـدې اړه يې دامريکا او برتانې نه دمرستې غوښتنه وکړه.

دمارچ په ۲ مې نېټې په برسلز کې دناټو دغړو هېوادونو دمشرانو غونډه راوبلل شوه چې پکې دروسې دا اقدام وغندل شو، دا داروپا امنيت ته خطر وبلل شو او دروسې نه وغوښتل شول چې دکريميا نه خپل فوځونه شاته کړي خو نه يواځې دا چې دلويديځ دا غوښتنه له پامه وغورځول شوه بلکې دکريميا ددولت له لورې په ترسره شوې ټول پوښتنې کې دکريميا ۹۰ فيصد وګړو دروسې سره دالحاق په حق کې رايې ور کړې، دروسې دپارلمان نه دمنظورۍ نه پس ولسمشر ولادي ميرپوتين په روسې کې کريميا دشامليدو تړون لاسليک کړ او پـدې توګه په يوې اوونۍ کې کريميا دروسې برخه وګرځېده.

دمارچ په ۶مې نېټې امريکا پر روسې او کريميا دويـزې بنـديز اعلان کړ همدارنګه په برسلز کې د۲۸ غړو هېوادونو په بېړنۍ غونډه کې هم پر روسې دمحدودو بنديزونو پرېکړه وشوه او دستونزې دسوله ايز نه حل په صورت کې پکې دلا زياتوالي ګواښ هم وشو؛ددې ترڅنګ اروپائي اتحاد دروسې په ۱۲ او امريکا په ۲۰ فوځي او سياسي مشرانو بنديزونه لګولي دي؛ همدارنګه امريکا او متحدينو يې په G.۸ کې دروسې رکنيت معطل کړيدی. دامريکا ولسمشر بارک اوباما ويلي: کريميا ته دروسې دفوځونو داخلېدل داو کراين خپلواکې ترپوښتنې لاندې راوستې ده نو بايد روسيه له کريميا خپل فوځونه وباسي، خو دروسې ولسمشر پوتين وايي دکريميا ټول پوښتنه دجمهوري اصولو سره سمه ترسره شويده، لويديځ بايد سوړ جنګ ته لمن وهل پرېږدي؛ دروسې دګټو پرضد دځه ويلو نه نوره ډډه وکړي؛ په او کراين دروسې ژبو وګړو ژوند ته خطرونه متوجې دي چې روسيه يې دساتنې حق لري،،

خو لنډه دا چې دسوړ جنګ دپای ته رسېدو نه پس په رومبي ځل روسيه او دامريکا په مشرۍ کې لويديځ سره دمقابلې ميدان کې بښکاري ؛ او کراين چې لويديځ يې دخپلې برخې ګرځولو په تکل کې و روسې يې يوه برخه تر خپل کنترول لاندې راوسته ؛ پر نور او کراين يې هم دبريد کولو امکان نه شي رديدای ځکه چې دپخواني شوروي

اتحاد غړي هېوادونه بيا د روسي سره يو ځاى كېدل يا لږ تر لږه دروسي تر اغېزې لاندې راوستل يې دپوتين ډېره ستره هيله ده.

نو پوښتنه اوس داده چې د روسي او لويديځ ګټې چې داو كراين په ځمكه كې په ډېر سخت ټكر كې سره واقع شويدي نو لكه نړيوالې رسنۍ چې پـه ډېـر زور شـور لګيـا دي رښـتيا هـم ددې دواړو اړخونو ترمنځ دجنګ درامنځته كېدلو او بيا په دريم نړيوال جنګ دبدليدلو ډېر ستر خطر شتون لري؟

كه حالات پـه دقت وڅارل شي نو داسې ښكاري چې دخپل بازار ګرم ساتلو لپاره هسې نړيوالو مطبوعاتو تـه ستره موضوع پـه لاس ورغلې ده، حالات هيڅكله هغه لور ته ندي روان دكومو چې وړاندې ويني كېږي؛ داسمه ده چې دلويديځ او روسي دګټو دلته سخت ټكر راغلى دى؛ يو هم دلته دبل برلاسى نه غواړي خو داهم يو حقيقت دى چې يو هم دبل سره په جنګ كې اخته كېدل نه غواړي، داول او دوهم نړيوال جنګونو ستر تلفات او تاوانونه ددواړو مخو ته دي؛ دافغانستان جنګ ورماته كړې ملالا روسي پوره نده نيغه كړې او امريكا خو لا دخپل تاريخ پـه ترټولو اوږد او تاواني جنګ كې راښكيل ده او سره دټولو كوښښونو تـرې لاهم پـه وتلو نـده بريالى، شوې نوولې به دوىٔ دواړه په مالي او ځاني لحاظ يوستر تباه كونكي جنګ كې ځانونه اخته كوي ؟

امريكابه په جنګ كې داخته كېدونه دځان ساتنې ډېر كوښښ كوي خو روسيه هم داسې نده چې ګينې خامخا ځان دامريكاسره په جګړه كې ځان اخته كول غواړي ؛ روسيه نه پـه خپل زور مغروره ده اونه رښتيا هم دومره ځواكمنه ده لكه ځنې محلي رسنۍ يې چې ډېره طاقتوره ښكاره كوي؛ داربتياده چې روسيه د ۹۰ يمې لسيزې پـه پر تله ډېره ښه شويده ؛ پـه هر لحاظ يې پر مختګ كړيدى او پـه نړۍ كې بيا مطرح ده خو روسيه تر هغه حده هم وړاندې نده تللې چې پـه يواځې ځان دلويديځ مقابلې تـه راووځي ؛ دكريميا دلاندې كولو نه پس چې امريكا او اروپا دروسي سره تجار تي اړيكې پرې كړې او دجولائي مياشت كې د G۸ غړو هېوادونو كېدونكي كانفرانس سره يې مقاطعه اعلان كړه نو دروسي كرنسي په نړيوال مار كيټ كې دډالر پـه مقابل كې دومره راپرېوته چې دخپل ارزښت بيا ترلاسه كولو يا لږ تر لږه د نور پرېوتو نه دساتنې لپاره روسيه مجبوره شوه چې مار كيټ ته لس بليونه ډالر عرضه كړي.

نوښكاري داسې چې دكريميا داشغال نه پس بـه روسيه انتظار وباسـي كـه لويـديځ سـره دايكـو خرابېـدلو او وربانـدې دبنـديزونو دلګېدلو له امله يې اقتصاد مخ په خرابېدو شو نو نرمي به غوره كړي او شايد چې دكريميا نه يو قدم هم وړاندې لاړ نه شي او كه يې اقتصاد خراب نه شو نو شايد چې داو كراين په نورو برخو دقبضې لپاره هم يو لړ نظامي اقدامات وكړي چې پدې سره به يې دامريكا او نور لويديځ سره روابط نور هم ترينګلي شي خو بيابه هم دامريكا او روسي ترمنځ تصادم رامنځته نه شي ځكه چې او كراين دناټو غړيتوب نه لري چې همدابـه امريكاتـه دروسـي مقـابلې تـه دنـه راوتلـو ښـه پلمـه وي ؛ موږاو تاسووليدل چې دااروپـائى اتحـادپې پارلمـان اعـلان وكـړ چـې دروسي سره دمخامخ جګړې احتمال مخ پـه زياتېـدو دى خو ددې پـه سبا دهاليند په هاګ ښـار كې داتومي سر مشريزې غونډې پـه څنډه كې دامريكـا ولسمشـر بـارك اوبامـا خبريـالانو تـه ښـه پـه روښـانه ټكـو وويل چې امريكا به هيڅكله دروسي پر خلاف لـه فوځي طاقت نه كار وانخلي او دليل يې داوړاندې كړ چې ګني او كراين دناټو ترون غړى هېواد ندى په داسې حال كې چې امريكا يواځې لـه ځان او دخپلو ناټو متحدينو څخه ددفاع لپاره دفوځي ځواک كارول مكلفيت لري؛ هغه په خپل فوځي كمزورى داعتراف كولو پـه لړ كې داهم وويل چې دا شوني نده چې روسي فوځيان په زور له كريميا څخه وويستل شي

داو كراين ځني ګاونډي هېوادونه لكه پولينډ، رومانيه سلواكيا او هنګري دناټو غړيتوب لري نو كـه پدې هېوادونو كې پـه كوم يو روسي حملـه وكړه او يـا دوىٔ كې كوم داو كـراين دمرسـتې پـه موخـه دروسي مخې ته ودرېدلو نو بيا دامريكا او روسي ترمنځ تصادم يقيني كېږي خو نه به روسيه پدې هېوادونو دحملې اشتباه وكړي او نه بـه دا كمزوري هېوادونه دخپل ځان نه دخورا ډېرې ځواكمنې روسي سره دښكر اړمولو حماقت وكړي.هو! دبالواسطه تصادم خطر شتون لري؛ هغه داسې چې دروسي پـه مقابل كې داو كراين دځواكمن كولو پـه موخـه كېداى شي امريكا او دناټو ځني ستر غړي هېوادونه په پټه داو كراين سره فوځي مرستې وكړي چې ورسره بـه روسيه هم پـه او كراين كې خپل طرفداران په پټه مسلح كړي، او كراين به دجنګ ډګر وګرځي چې دابه دروسي لپاره ښه خبر نه وي.

